# ژوند او بریا

د علماؤ او پوهانو په وینااوو کې

راټولونه او ژباړه | **اندیال ساپی**





www.larkhud.com

# بریا او ژوند

## د علماؤ او پوهانو په ویناوو کې

لومړی ټوک

راټولونه او ژباړه:

**انـــــدیال ساپی**

کال ۲۸/۰۵/۲۰۲۰م

# یادونه:

په ټولنیزو رسنیو کې د اسلامي لارښود سایټ د نوم په یادونې سره هر چاته دکتاب نشرولو اجازه ده، خو په کتاب کې بدلون او تغیر راوستل او یا په خپل نوم د خپلې لوګو سره خپرول اخلاقي جرم دی، باید ډډه ترې وشي.

**په درنښت**

**د اسلامي لارښود سایټ اداره**

د چاپوونې ټولې رښتې د ژباړن سره خوندي دي

## د کتاب ځانګړنې

---

د کتاب نوم: بريا او ژوند د علماوو او پوهانو په وييناوو کې

راټولونه او ژباړه : انــــــدیال ساپی

کمپوز : ژباړن

چاپ کال : ۲۰۲۰م

چاپ شمېر : ناچاپ

خپرندوی : اســلامي لارښود ســايټ

---



هيواد والو د ديني پوهاوی، باورې سرچينه

Www.larkhud.com

# ســـریــــزه

د بریا او ژوند کتاب عبارت دی له هغه نقل شویو ټولګټو ویناوو، د لنډو او تأثیر ناکو کلمو څخه چې په یوه کلکه رایه او سمه پرېکړه مشتملې دي، چې د تجربې، زیرکتیا کارونو د پوهاوي او جریانه زېږدیدلې دي.

د پند، حکمت اوغوره ویناوې په غالبه توګه له عقلمند او پوهه انسان څخه صادرېږي چې تجربو زیرک کړی وي او د مېړانې نښه یې پرې لګولې وي.

حکمتونه او غوره ویناوې په بشري نفسونو غښتلی تأثیر لري ، انسان فضیلت او غوره والي ته هڅوي او د هغه نښې ورته ښکاره کوي ، د هغې ترلاسه کولو ته یې رابولي او په خپلولو کې یې ورسره مرسته کوي.

دا ځکه چې غوره ویناوې د عقل زېږنده، د تجربې ثمره او د فکر نچوړ دی.

مونږ ته د صحابو، تابعینو، علماوو،دین د امامانو او مخکنیو پوهانو څخه ډېرې ټولګټي ویناوې او ګټور وصیتونه راپاتې دي چې د ټولنې په اصلاح، سمون، هوساینه، سرلوړۍ او ژوند د چارو په بریالیتوب کې له مونږ سره مرسته کوي، او راته د یو روښانه او روڼ راتلونکی په لور د مشال په څیر لار ښايي، چې د ټولو راټولول ناشونی کار دی خو مونږ هڅه کوو ترڅو پدې ټولګه کې ترې د خپل توان په اندزه ځینې نمونې ذکر کړو.

په پای کې د الله جل جلاله څخه سوال کوم چې دغه کوچنی عمل د لیکوال او لوستونکو د ثواب سبب وګرځوي.

انــــدیال ســـاپی

اسلامي پوهنتون مدینه منوره

۲۰۱۸/۳/۳۰م

# بـــــریا او ژونـــــد

د شخصیت لوړونې، بریا، هوساینې او ژوند دبیلا بیلو اړخونو د سمون او اصلاح په اړه د سلفو او معاصرو علماوو او پوهانو په اړه گټورې ویناوې:

*****

## د انسان شرایط:

هغه د داخل پورې تړاو لري،
که ته یې د داخل په پېژندلو نشې توانیدلای،
نو په نیک گمان یې،
درناوي وکړه!

*****

## رښتني ویاړ:

دا ویاړ نه دی چې ځواکمن راوپرځوي، بلکې ویاړ دا دی چې له کمزوري سره انصاف وکړې.

*****

## د عقل ارزښت:

هر څه چې ډېر شي ارزښت کموي، له عقل څخه پرته چې هر څومره ډېرېږي هغومره یې ارزښت لوړېږي.

*****

## څنګه خپل وخت تنظیم کړو؟

- د لومړیتوبونو ترتیبول.
- له لټۍ او نن سبا ډډه کول.
- د ثابتو کارونو لپاره وخت ټاکل لکه: خوب، خوراک، لیدنې او داسې نور...
- له ټولو هغه کارونو ډډه کول چې وخت د ضایع کیدو لامل ګرځي.
- ځان په جدیت، فعالتیا، ترتیب، په نیکو او ګټورو کارونو اموخته کول.
- وخت نه د ګټې اخستنې په اړه د مخکنیو نیکانو کیسې لوستل.

*****

**مشکلات مو باید اړیکو دپریکون لامل نشي:**

کله چې مو نوکان لوېږي باید نوکان پرېکړو نه خپلې ګوتې، کله چې مو مشکلات زیاتېږي باید خپلې ستونزې او مشکلات حل او ختم کړو نه خپلې اړیکې.

*****

**ځان د نورو په ځای ګڼل:**

دخلکو په اړه هغه څه مه وایه چې د ځان په اړه یې ویل بد ګڼې.

*****

**دردونکی حقیقت:**

که چېرته مونږ پوهیدلی،

چې په غیاب کې(پشي شاه) زمونږ اړه څه ویل کیږي، نو د ډیرو خلکو په مخ کې به مو موسکا نه وی کړي.

*****

## دبدلون اهم لاملونه:

پنځه شیان که چېرته بدلون ومومي نو لامله یې انسان هم بدلیږي:

- قناعتونه.
- پاملرنې.
- وړتیاوې.
- اړیکې.
- رهبر او لارښود.

*****

## څلور شیان درته بریا تضمینوي:

- تر ټولو زیات کار کول.
- تر ټولو زیاته پوهه اوعلم ترلاسه کول.
- تر ټولو زیاتې اړیکې پالل.
- تر ټولو ښه اخلاق کول.

*****

**درې شیان مه پرېږده چې ستا د ژوند پرېکړه وکړي:**

- بدې خاطرې.
- خلک.
- مال.

*****

**د دریو جملو په اړه ځان ناخبره کړه:**

- ما اوریدلي.
- خلکو ویلي.
- خلک به وایي.

*****

**د خپل ځان په اړه درې شیان مه منه:**

- نور درته قناعت درکړي چې ته له هغوی ټیټ یې.
- خپله دا عقیده لرل چې ته له هغوی کم یې.
- په نورو باندې د لوړوالي په توان دې شک وکړي.

*****

**وخت او شپې ورځې دې وړاندې دوه انتخابه ږدي:**

- یا به د نورو لپاره قدوه گرځې.
- او یا هم عبرت.

د ځان لپاره مناسب انتخاب وټاکه!.

*****

**درې خبرې باید د هر چا په ذهن کې ځای ولري:**

- له مرگ څخه خلاصی نشته.
- په دنیا کې ارامي او راحت نشته.
- او د خلکو له خبرو سلامتیا نشته.

*****

**د نورو ژبې چوپ نه پاتې کېږي:**

د خلکو خبرې د خاورو په څېر دی، که په هوا کې وانلوځې، نو د قدمونو لاندې کېږي.

سالم اوسه د خلکو ژبې چوپ نه پاتې کېږي.

*****

## نورو ته احترام لرل:

نورو ته احترام او درناوی درلودل هغوي ته ستا د اړتیا په معنی نه دي، بلکې دا ستا اخلاق دي که څه هم هغوي یې وړ نه وي.
ستا ارزښت ستا په اخلاقو پورې تړلی دي.

*****

## په الله جل جلاله باور درلودل:

که په ژوند کې هر څه د لاسه ورکړئ، خو هېڅکله په الله جل جلاله باندې خپل باور له لاسه مه ورکوئ.

*****

## دوه شیان انسان نړوي:

- د تېر وخت په اړه فکر کول.
- او دنورو په کړنو ځان مشغولول.

*****

**یوازې خبرې پوره نه دي:**

زما له ناوړه اخلاقو شکایت مه کوه!

بلکې ماته په خپل ځان کې وښایه، چې باید ښه اخلاق څرنګه وي.

*****

**له دريو کړنو څخه ځان وساته:**

- دخوښۍ پر وخت ژمنه کول.
- د غوسې پر وخت ځواب ورکول.
- او دغم پر وخت پرېکړه کول.

*****

**دري شيان بېرته نه راستنيږي:**

- له خولې وتلې خبره.
- له لیندې وتلی غشي.
- او تېر شوی وخت.

*****

**څلور شيان مو څلورو ته د رسيدو لامل ګرځي:**

- چوپتيا مو سلامتيا ته رسوي.
- نيکي او ښيګړه مو عزت او درناوی ته رسوي.
- سخا مو سرلوړی ته رسوي.
- شکر ويستل مو د نعمتونو زياتوالي ته رسوي.

*****

**له ما وپوښته:**

که غواړې چې زما شخصيت معلوم کړې نو له ما پوښتنه وکړه يا راسره ملتيا وکړه، که دا دې له وسه پوره نه وي،
نو زما په اړه له بل چا پوښته، ځکه زمونږ ټولنه له کينه ګرو او نفاق اچوونکو ډکه ده.

*****

**وهم او حقيقت:**

له وهمي او خيالي مانيو څخه د حقيقت جونګړه ډيره غوره ده

*****

## په اړه یې اندیښنه مه کوه :

که څوک تاته رد بد وایي ستا د رسوایي او زیان هڅه کوي،
دا معنی نه ده چې ته یې د زړه په ترلاسه کولو کې پاتې راغلی یې
بلکې تا یې له خپلې ناوړې څېرې پرده پورته کړه.

*****

## د فکر زاویه:

هر شخص د خپل فکر او پاملرنې له زاویې د نورو کړنې څاري،

- دچا غیبت مه کوئ.
- دچا سپکاوی مه کوئ
- پر چا ظلم مه کوئ
- او مه د چا په نیتونو او خاطرو کې ورننوځئ.

*****

## دردونکی حقیقت:

فرضا : که همدا اوس درته ژمینه مساعده شي، چې دخپل ځان په
اړه پښې شاه کیدونکي خبرې واوري،
نو له هغې چا به درته سخته صدمه ورسي چې مخامخ درته خندا
کوي.

*****

## د سپکو ځان وساته:

څوک چې دې درناوی وکړي ته يې هم درناوی وکړه،
څوک چې دې سپک وګڼي نو د هغه نه په لرېوالي او ډېره کولو د ځان درناوی وکړه.

*****

## دځان درناوی:

د خپل ځان د درناوي يو ډول دا دی چې له هغه اشخاصو جلا شې چې ستا قدر او اهميت نه پيژني.

*****

## د قناعت عينکې:

قناعت هغه عينکې دې چې په سترګو يې کړې نو ژوند درته ښکلی ښکاري، خو که د سترګو دې لېري کړي نو سترګې دې بيا په هيڅ شي نه مړېږي.

*****

## چوپتیا:

په سختو حالتو کې د جنجال او جګړې پر ځای چوپتیا درناوی او احترام زیږوي، ځکه جنجال د کینې او نفرت لامل ګرځي.

****

## د عقل وړوکوالی:

عقلونه هله کوچني شي، چې د نورو په عقلونو مشغول شي، او بیا بېرته هله لوړ شي چې کله یې ترکیز او پاملرنه خپل ځان ته شي.

*****

## یواځیتوب:

یواځې خوښ ښه یې له دینه چې ترڅنګ دې زر منافقین شتون ولري.

*****

## بشریت د عقلونو ډولونه:

د انسانانو عقلونه په دري ډوله دي:

- لوړ عقلونه چې له افکارو او نوښتونو څخه بحث کوي.
- متوسط او درمیانه عقلونه چې له پېښو څخه بحث کوي.
- ټیټ او کمزوري عقلونه چې د خلکو په اړه خبرې کوي.

ستا عقل له کوم یو ځخه دی ؟.

*****

**پیاوړی عزم:**

د حق په لاره کې یواځې پاتې شه، خو د باطل د لارې سر لښکری مه جوړیږه.

*****

**مه خفه کیږه:**

مه خفه کیږه که یو څوک ستا قدر او احترام نه کوي، ځکه دا دانسانانو طبیعت دی چې تر هغې د نعمت ارزښت نشي پیژندلای تر څو چې له منځه ولاړ نشي.

*****

**غربت:**

په غربت او بیوزلی کې تر ټولو غوره دا ده، چې مصلحت له ملګرو دی لېري ساتي.

*****

**اړتیا:**

اړتیا سپین بږیری هم توپ وهنې ته اړ کوي.

*****

**عقل:**

یوازې دا پوره نه ده چې ته ښه او پیاوړی عقل ولري، بلکې مهمه او لازمه دا ده چې ته یې ښه او پر ځای استعمال وکړې.

*****

**تل خیرخواه اوسه:**

**ځکه:**

- د نورو سوکالي ستا خوښي له منځه نه وړي.
- د نورو شتمني او مال ستا رزق نه کموي.
- دنورو روغتیا  او سلامتیا ستا صحت ته زیان نه رسوي.

تل پاک نفسه او خیرخوا اوسه، د نورو لپاره هغه څه خوښ کړه چې د ځان لپاره یې خوښوي.

*****

## شخصي ژوند د تنظیموني شپږگوني قواعد:

- له استعمال وروسته ټول شیان خپل ځای ته ورسوه.
- له استعمال وروسته ټول خلاص کړي شیان قلف کړه.
- غورځیدلی شیان خپل ځای ته اوچت کړه.
- ویستلي جامې (کالی) خپل ځایو ته راځوړندي کړه.
- کوم شیان چې رغونې ته اړتیا لري هغه وروغوه.
- د اړتیا وړ شیان له ځان سره یاداشت کړه.

*****

## باید پر یو بل رحم وکړو:

که چېرته انسانانو د زړونو لیدل ممکن وي، نو د هر زړه دردونکې کیسې به مو لوستې وی، راځئ چې په یو بل رحم وکړو، ښایي الله جل جلاله پر مونږ رحم وکړی.

*****

## اعتذار:

که چېرې ستا په نفس د عذر وړاندې کول سخت وي، نو په یاد ولره چې د نورو نفسونو ته ستا د ناوړه کړنو زغمل سخت دي.

*****

## ستا ارزښت په تا پورې تړلی دی:

په دې تمه خلکو ته په ځان ښوونه ژوند مه تیروه چې څوک دې خوښ کړي، ستا ارزښت په نورو کې نه دی، بلکې ستا په داخل پورې تړلی دی.

*****

## په ځان باور کول:

په ځان باور دا عقیده لرل نه دي چې ټول خلک دې تا خوښ کړي، بلکې دا عقیده لرل دی چې د خلکو خوښي او نا خوښي ستا په شخصیت اغیز ونه کړي.

*****

## د هیڅ چا سپکاوی مه کوه:

مرغان میږیان خوري خو چې کله مړه شي بیا یې میږیان په خوراک پیل کوي، حالات بدلیږي....
د هیڅ چا سپکاوی مه کوه، که ته نن ځواکمن یې نو په یاد ولره چې زمانه له تا ډېره ځواکمنه ده.

*****

**دغږ لوړول سړیتوب نه دی:**

که چېرته غږ لوړول سړیتوب وی،
نو سپي به په سړیتوب او نرتوب کې د ټولو مخکښان او سرداران ول.

*****

**له ځانه پیل وکړه!**

ددې پر ځای چې دفتوی پر کرسۍ ناست او پر نورو تور پورې کوي، لومړی خپل ځان داصلاح هڅه پیل کړه.

*****

**له ځان وروسته گناه مه پرېږده:**

نیکمرغه هغه دی،
چې له مړینې سره سم یې گناهونه هم مړه شي.

*****

**د نورو پرده ساتل:**

که غواړې چې دالله تعالی له لورې په پرده کې پاتې شي،
نو هغه د هېڅ یو بنده بې پرده گي مه کوه.

*****

**صبر:**

دصبر په اوموخت سره دژوند نيمې ستونزې راکمېږي.

*****

**له نورو سره ښېګڼه کول:**

داسمان دلاندې او دځمکې پر سر په هرځای کې له هر چا سره ښېګڼه او نيکي وکړه، ځکه ته نه پوهېږې چې کله او چېرته به يې بدله مومې؟!.

*****

**د نيکانو بدي بيانول:**

دانسان لپاره داشر پوره دی چې نيک عمله او صالحه نه وي، خو د نيکانو په اړه بد وايي!

*****

**له وينا سره بايد کړنه مل وي:**

دښې وينا سره دې عمل هم ښه کړه، تر څو ښه وينا او ښه عمل سره يو ځای شي او ښه پايله ولري.

*****

## قناعت او رضایت:

څوک چې دنیا کې په لږه رضایت او قناعت وکړي، ټولې ستونزې به ورته اسانه شي.

*****

## ستونزمنه ده:

دا لازمه نده چې دځان لپاره په هر زړه کې ځای پیدا کړي،
ځکه دخلکو زړونو تنګ شوي،
بلکې یوازې دا پوره ده چې ددوی په نفسونو کې دخپل احترام
دراټوکولو کوښښ وکړي.

*****

## د خوښۍ او کرکې لامل:

څوک چې دې دکومو خویونو لامله خوښوي، دهغې د نشتون لامله درڅخه کرکه هم کوي.

******

**د رسنیو سره په تعامل کې احتیاط:**

د ناسمه خوړو په خوراک سره صحت خرابېږي، خو دبې لارې او فاسده کتاب په لوستولو سره عقل فاسدېږي.
(ځیرکه اوسئ چې رسنۍ مو په عقل لوبې ونه کړي).

*****

**ورځنۍ حقیقت:**

مونږ ځینې داسې اشخاص له لاسه ورکوو ،
چې مړه نه وي مگر په هغوی کې هغه صفات او خویونه مړه شوي وي چې مونږ به یې لامله خوښول.

*****

**یو سپین ږیری راته وویل:**

یو وخت زه او صحت دواړه دمال په لټه کې وو، خونن زه اومال دواړه دصحت په لټه کې یو!

*****

**موبایل:**

دې د دعوت منبر کړه، نه دگناهونو هدیره.

*****

## جعلي دوستانه:

کوټه اوجعلي ملګری دسیورې په څېر دی،
کله چی زه په لمر کې یم له ما وړاندې روان وي، او کله چې تورتم ته شم بیا مې له مخې ورک شي.

*****

## له حکمت ډکې خبرې:

دري ډوله خلک پخپل ژوند کې مه هېروه:

- څوک چې درسره په سخت او مشکل وخت کې مرسته وکړه .
- څوک چې دې په سخت او مشکل حالات کې یواځې پرېږدی.
- څوک چې درته ستونزې او مشکلات پیدا کړي.

*****

## ګټور نصیحت:

که غواړئ چی په هیڅ کار ښپیمانه نشئ، نو هر کار د الله جل جلاله درضا لپاره وکړئ.

*****

## انسان او مړښت:

حیوان هغه وخت خطرناک وي کله چې وږی وي، خو انسان بیا هله خطرناک او ضرري شي چې کله په خیټه موړ شي.

*****

## د دوستانو غداري:

ځینې خلکو ماته داسې تجربه پریخوده،
چې د هغه نه په زده کړه زه کولای شم چې څرنګه د هغوی په څېر له نورو خلکو په راتلونکي کې ځان وساتم.

*****

## د الفاظو په سمه توګه استعمال:

خبرې او ویناوې کیلیانو ته ورته دي،
که په سمه توګه یې استعمال وکړئ، نو د ډېرو خلاصی خولې به پرې بندې کړئ،او د ډېرو بند زړونو به پرې خلاص کړئ.

*****

## د زړونو ترلاسه کول:

که غواړئ چې دنورو په زړونو کې احترام پیدا کړئ،

نو دخپلې وینا او اسلوب معیار لوړ کړئ نه دا چې په خلکو خپل غږ لوړکړي.

(ځکه باران ګلونه رازرغونوي نه برښنا)

*****

**اخلاق:**

اخلاق د دوکان په څیر دي،

چې قفل یې ژبه ده ،کله چې قفل خلاص شي نو معلومه شي چې په دوکان کې سره زر دي او که سکاره.

*****

**د الله جل جلاله په پریکړه رضایت:**

هغه څه بد مه ګڼه چې الله تعالی ستا لپاره غوره کړي دي، ځکه کله د الله جل جلاله په غوروالې او انتخاب کې لوی مصلحت پروت وي، چې ته پرې نه پوهیږې.

*****

## د پند خبره:

له يوې ونې څخه يو مليون د اور بلونې کړکې جوړېږي، خو دغه يو کړکی کولای شي چې مليون ونې وسوځوي.
له دې امله په خپل ژوند کې يو منفي کړنه هم مه پرېږده چې ستا مليون مثبتې کړنې له منځه يوسي.

*****

## د درد احساس:

هغه څوک چې درد او تکليف پېژني، تل به يې په سختيو او مصبتونو کې دنورو ترڅنګ ولاړ وينې.

*****

## راتلونکي ته تغير ورکړئ:

که دا امکان نه لري چې شاه ته ولاړ شئ او پيل ته تغير ورکړئ، خو دا امکان لري چې له خپل ځايه پيل وکړئ او خپل راتلونکی تغير کړئ.

*****

## رښتيا او دروغ :

په دې خاطر دروغ مه وايه، چې خلک راجذب او تا خوښ کړي،

او له ربنتیاو مه ویرېږه که څه هم خلک له تا لېري کوي،
ځکه دخپل ځان او نورو سره ربنتنولي یو ستر هدف دی.

*****

**بد گماني:**

په ټولنه کې یوه بشري کړۍ داسې ده،چې خلکو ته یوازې
دنیمگړتیا په نظر گوري،
خو خپلو ځانونوته بیا دکمال په نظر گوري.

*****

**منفي کړنه:**

زمونږ ټولنه دسترگو پر ځای په غوږونو لیدل کوي.

*****

**ربنتنې نیمگړتیا:**

دا عیب نه دی چې یو څوک دې له تا څخه غوره وي،
بلکې عیب دا دی چې ته دنورو په وړاندې هغه د سمعت (حیثیت
)خرابولو هڅه کوی،
دا ځکه چې ته نه شې کولای چې د هغه په څېر ځان جوړ کړې.

*****

## چغلي:

که غواړې وپېژنې چې خلک ستا په غیاب کې ستاپه اړه څه وايي،
نو هغوی ته غوږشه...!
چې ستا په حضور کې د نورو په هکله څرنګه خبرې کوي.

*****

## هدف باید واضح وي:

ځکه دکامیابۍ په وړاندې ستر خنډ دموخو ناڅرګندتیا ده.

*****

## چاپلوسي:

ځینې اشخاص تاته مخلص نه وي،
یوازې خپلو ګټو دې ته اړ کړي وي چې تاته اخلاص وښايي،
کله چې یې پر تا پورې تړلې ګټې تغیر شي، نو اخلاص یې هم
ورسره تغیر وکړي.

*****

## د دنیا ازموینه:

مونږ تل په دنیا کې په ازموینه کې یو،
هره شیبه کیدای شي له مونږ څخه د امتحان پاڼه واخستل شي او هغه ځانګړی وخت پای ته ورسي چې دالله جل جلاله له لورې ټاکل شوي،

**نو....**

خپلو پاڼو ته پاملرنه وکړئ او د نورو پاڼو ته له کتو تېر شئ.

*****

## د خلکو تعامل:

په ژوند کې به له دوه ډولو خلکو سره مخامخ کېږئ:

- لومړی هغه دي چې ستا دښه سړیتوب او خدمت له وجې ستا قدر او احترام کوي.
- دوهم هغه دي چې ستا ښه سړیتوب او خدمت یوازې دځان په ګټه استعمالوي.

*****

**د نورو په اړه فکر:**

خپله خبره په خپل ځان تجربه کړه،

مخکې له دینه چې دنورو په نفسونو یې ورتېک وهې.

*****

**دهغه چا په خېر شه!**

چې په لیدو دې خلک ووايي،

(لاتر اوسه په نړۍ کې ښېګڼه شتون لري).

*****

**مخ بدلونه:**

خلک هره ورځ خپل مخونه بدلوي، نو خپل ارزښت دخلکو په مخونوکې مه ګوره!.

*****

**له ژوند نه زده کړه!**

زیاتره ستونزې او مشکلات له دو لاملونو مینځته راځي:

- بدګماني.
- ضد او عناد.

*****

## ښه او بد:

عقلمند یوازې هغه نه دی چې د ښو او بدو توپیر وکړي، بلکې عقلمند هغه دی چې دښو پیروي وکړي اوله بدو ځان وساتي.

*****

## بریالۍ دوستي:

بریالۍ دوستي دسترګي او لاس داړیکې په څېر ده،
کله چې لاس دردمند شي سترګه اوښکې تویوي،او کله چې سترګې اوښکې توي کړي نو لاس یې پاکوي.

*****

## ژوند:

د ژوندانه په نظام کې:

- نه بشپړه خوشحالي شته.
- او نه تل پاتی غم.

*****

## چوپتیا:

یو حکیم وایي:
انسان خبرو د زده کړې لپاره دوه کاله ته اړتیا لري، خو د چوپتیا دزده کړې لپاره پنځسوکلونو ته اړتیا لري.

*****

## ځینې خلک:

ځینې خلک دمصنوعي ونو په څېر وي،
چې هرڅومره یې دښېګڼو په اوبو خړوب کړې خو بیا هم میوه نه نه نسي.

*****

## د خلکو کړنې:

ویناوې کله دروغجنې وي خو کړنې تل حقائق وایي،
له ځینو حالاتو ډېره مننه ، چې ماته یې دبشریت ربښتونې څېره راڅرګنده کړه.

*****

## نورو د مشاعرو خیال ساتل:

د خلکو له احساساتو سره لوبې مه کوه ،شاید ته پدغه لوبه کې بریالي شي، خو خپل خواو شاه دوستان به دژوند په اوږدو کې له لاسه ورکړي.

*****

## سپی او غرڅنی:

سپي له غرڅنۍ څخه وپوښتل ته ولې په ځغاسته کې تل له ماڅخه مخکې یې؟ هغې ورته په ځواب کې وویل:څه دخپل ځان لپاره منډه وهم او ته یي دخپل بادر لپاره وهي!.
که دحق لپاره له ځان څخه غرڅنۍ نه شي جوړولي نو دباطل لپاره له ځان څخه د پردیو سپي مه جوړوه.

*****

## د تعامل اساس:

يو حکيم وايي:
دخلکو سره تعامل دليدلو اخلاقو په بنياد وکړه،
نه د هغو خبرو په بنياد چې دهغوی په اړه يې له خلکو څخه اوري،ځکه ډېر ځله اوريدلي خبرې دهغوی ربښتونی تمثيل نه کوي.

*****

## انسانيت:

انسان چې کله انسانيت هېر کړي، بيا له حيوانه هم بدتر شي.

*****

## دنورو ناوړه کړنې بايد ستا د بد خوی لامل نشي:

کله چې له يو هيواده ځنګل جوړشي ، نو دا مهمه نه ده چې ته دې هم د هغوی په څېر له ځانه حيوان جوړکړې.

*****

## دخپل ځان احترام:

د خپل ځان احترام به دې کله دې ته اړ کړي، ترڅو پخپل ژوند کې له ډېرو خلکو سره اړيکې وشلوې.

*****

**کله ناکله په ناخبرۍ کې راحت وي:**

ټول هغه څه چې مونږ يې پېژنو زړه نه په ارامه کوي، کله ناکله دزړه سکون د ځينې کارونو په نه پېژندلو کې وي!

*****

**له تا سره مينه لري:**

ځينې خلک ستا خطاګانې او تېروتنې پلټي، ترڅو له تا رخصت شي، او ځينې نور بيا ستا له تيروتنو سترګې پټوي، ځکه له تا سره مينه لري!

*****

**درې شيان ګټه نه لري:**

په درې شيانو کې ګټه نشته:

- دولت چې د بخيل په لاس کې وي.
- توره چې دبوزدل په لاس کې وي.
- قلم چې دمنافق په لاس کې وي.

*****

## وفادري او انسان:

سپي ته درې ورځې ډوډۍ ورکړه،
تر درې کالو پورې به د یاد ساتي.
انسان ته درې کاله خوراک ورکړه، په درې ورځو کې به د هېر کړي.

*****

## خیانت:

په وړاندې دې دړاونکی زمري غوره دی له دینه چې ترشاه دې خاینه ګیدړه وي.

*****

## پټه کینه:

که چېرې خلک دخپل ځان په اړه دنورو د زړونو له ارادو خبر وی، نو له یو بل سره به تورې په لاس مخامخ شوي وی.

*****

## دنیا او د اخرت ګټه:

درې شیان د اخرت د ثواب پرته په دنیا کې هم ګټه لري:

- حج کول بیوزلي او غربت ختموي.

- صدقه کول د مصیبت مخه نیسي.
- نیکي او ښېګړه کول عمر زیاتوي.

*****

**د قدرت شکرانه:**

کله چې په دښمن برلاسی شوې، نو هغه ته ښښنه د خپل برلاسیتوب شکرانه وګرځوه.

*****

**د نفس درملنه:**

د خپل نفس او اروا درملنه وکړه، له ځان نه ټیټو خلکو ته وګوره ترڅو درد او لویي دې له منځه ولاړه شي.

*****

**دردونکي حقیقت:**

یو وایي:
نیکه ته مې وویل: ولې خپلې پیسې په قران کې پټوې؟
هغه وویل: زه پوهېږم چې تاسو یې نه خلاصوئ.

*****

**د فکر وړ ده:**

په یوه لېرې پرته سیمه کې می سل کلن بوډا ولید،
ترې ومي پوښتل:چې په دومره سپینږرتوب کې دې د روغتیا او چټک کار راز څه دی؟
نو ویې ویل: کینه مې پرېښوده نو صحت راته سلامت پاتې شو.

*****

**په زړه پورې ده:**

مناسب وخت د راتلو انتظار مه باسه، ښايي هېڅ کله رانشي،
بلکې د ترکاڼ په څېر کار وکړه، ترکاڼ د میخ ټکوهلو لپاره خالي ځای نه ګوري ، بلکې هغه د ایښودنې لپاره ځای ټاکي او په ټک وهلو سره میخ ډېر په سختۍ خپله لار څیروي،
خپلې غوښتنې وپېژنه او په کلک هوډ ورته لار څیري کړه،
ځکه زړه نازړه او حیران شخص هېڅ کړنه نه شي ترسره کولای.

*****

**تریخ حقیقت:**

له یو حکیم څخه وپوښتل شو:
چې دا اسمان ولې دومره صاف وي؟

هغه موسکی شو او په خواب کې یې وویل: ځکه هلته انسانان نه اوسیږي.

*****

**همیشه مثبت اوسئ:**

ځینې خلکو ژوند څخه د خوند او ګټې اخستنې فرصت له لاسه ورکړي، منفي اړخونو په ټینګار او له خپل حد څخه د هغې په لویولو روږدې شوي وي، سره له دې یې دژوند له مثبتو برخو ځان ناخبره ساتلي وي.

*****

**دپردیو کورونو پرده ساتل:**

د خلکو کورونو ته ړانده ننوځئ او ګونګي ترې راووځئ، هغوی د کورنیو چارو تفصیل او هلته اوریدلې خبرې په تاسو پورې هیڅ تړاو نه لري.

*****

### د نورو څارل پرېږده:

- خپلې کړنې وڅاره، دنورو دکړنو څارل پرېږده، ځکه د نورو نه څارل نیمه راحت دي.
- د نورو په چارو کې لاسوهنه مه کوه، د نورو په چارو کې عدم تدخل نیمه ادب دي.
- په ځینو حالتو کې چپ پاتې شه، ځکه چوپتیا نیمه حکمت دي.

*****

### نیکمرغي په دري شیانو کې ده:

- د الله جل جلاله د حکمونه پرځای کول.
- په خپله برخه قناعت کول.
- د الله جل جلاله په پریکړه راضي کیدل.

*****

## بې ځایه ستړتیا:

ذره بین دې یو اړخ ته کړه...
د بې ارزښته کړنو لوړول د ستړتیا پرته بله معنی نه لري،
هر څه ته مناسب اهمیت ورکړه که چېرې ورته له حده زیات ارزښت ورکړي د هغه سره چلند به درته ستونزمن شې.

*****

## پرتله:

گتې له الماسو څخه ډېرې درانده وي، خو له الماسو سره هیڅ نه پرتله کېږي،
همدرانگه اشخاص هم،
سرېتوب او مقام یې باید له منصب او رتبې قیاس نه شي بلکې په اخلاقو یې قیاسول پکار دي.

*****

## دوستي کله نړېږي:

د خلکو ترمنځ دوستي هله نړېږي،
کله چې يې ترمنځ ملامتیا زیاته شي، دروغ ډېر ي، پاملرنه او اهتمام کم شی.

*****

## د نورو سره مو اخلاق او رویه سمه کړئ:

نیکه مې راته وویل:
ای بچوړیه زړونو دترلاسه کولو او زړونو دماتولو ترمنځ يو باریکه تار دی چې هغې ته اسلوب وايي.

*****

## د ناوړه اخلاقو خاوند:

په خلکو کې تر ټولو د ناوړه اخلاقو څښتن هغه دي، چې کله درڅخه ناراضه او خپه شي:

- نیکي دې هېره کړي.
- راز دې افشا کړي.
- دوستي دې له یاده وباسي.
- او هغه څه درپسې وايي چې په تا کې نه وي.

*****

## د اخلاقو مرتبې:

اخلاق خپلې مرتبې لري،
څومره چې دې اخلاق لوړېږي هغومره دې د خلکو ترمنځ قدر لوړېږي.

*****

## نورو د کړنو سره د چلند اسانه لار:

که د خلکو خبرو درمند کړې، نو خپل نفس په ډېر فکر او سوچ لا مه دردمند وه، چې ولې يې داسې وويل او داسې يې وکړل، لومړی په خپل رب باور وکړه او بيا پخپل ځان، ترڅو چې هغوی ستا په څېر انسانان دي نو د ژبو پرته بل څه نه لري،
نه ګټه درسولی شي او نه ضرر،
يو کار ته له خپلې اندازې زيات ارزښت مه ورکوه.

*****

## کیسه:

د والدینو سره نیکي او ښه چلند هغه کیسه ده چې ته یې لیکوال یې، او بچیان به دې له تا وروسته نورو ته نقلوي، نو د خپلې کیسې لیکل دې په سمه توګه وکړه.

*****

## د الفاظو سم انتخاب:

که چېرته ووایي: چې نیمه تولنه بده او ناکامه ده نو ټول په غوسه کېږي.

خو که ووایي: چې نیمه ټولنه بریالی ده نو ټول دې ویاړي.

داوړه جملې یوه معنی لري،

خبرې دی په سمه توګه انتخاب کړه تر څو پیغام دی تر نورو ښه بڼه ورسېږي.

*****

## په الله تعالی باوري اوسئ:

دګناه لپاره توبه شته، د غم لپاره خوشحالي، د تنګستیا لپاره راحت، دسختۍ لپاره اساني، دبدبختۍ لپاره نیکبختي،

او د هر څه لپاره حل،

خو یوازې صبر وکړئ او په الله جل جلاله باوری اوسئ.

*****

**دفکر وړ ده:**

پخپلو جیبونو کې د صدقې پر وخت تر ټولو کم نوټ لټوو،
او بیا د الله تعالی نه غواړو چې مونږ ته پرې جنت الفردوس راکړي،
د الله په لار کې مو د صدقې کچه څومره ټیټه ده، او غوښتنه مو څومره لوړه ده.

*****

**لمونځ او صحت:**

تر څو چې صحت درسره په جای نماز د ودریدو ملتیا کوي، نو تراوسه دې لا هیڅ هم د لاسه نه دي ورکړي.

*****

## دا ډېر شرم دی:

چې ته په هغه څه ویاړې، چې ستا کړنه نه ده،
په خپل ښائست مه ویاړه،
په خپل نسب مه ویاړه،
ځکه ته دې له موره پیداسې حال کې زیږدلی یې چې د رنګ،
صحت او نسب اختیارونکی نه وې، که د خلکو احترام نه کوی نو
د خپل خالق احترام وکړه.
یوازې پخپلو اخلاقو ویاړه چې ستا کړنه ده

*****

## د زړه تنګستیا:

زړه مې راتنګ شو له نیکه مې وپوښتل چې څه وکړم؟
هغه راته په خواب کې وویل: ای بچوړیه!
په دري شیانو خپل وخت مه ضائع کوه:

- په تېر شوي کار افسوس کول ځکه هغه نه راستنیږي.
- خپل ځان له نورو سره پرتله کول، ځکه دا کار کومه ګټه نه لري.
- ټولو خلکو د رضایت هڅه، ځکه دا ناشوني ده.

*****

## د بچیانو روزنه:

ولې ډېر زر خپلو بچیانو سره اعصاب له لاسه ورکو؟!

- نسبت لویانو ته هغوی په خبره کم پوهېږي.
- د هغوی روزنه صبر او پرلپسې کوښښ ته اړتیا لري.

په یاد ولرئ چې زمونږ چغې هغوی ته زیان رسوي او له مونږ یې لیرې کوي.

*****

## امر بالمعروف:

دهرې نیکۍ پیل له ځانه وکړه،

ترڅو نورو د رابللو پروخت دې وینا مؤثره او اغیزناکه وي.

*****

## ډېره دردونکې ده ځوانانو:

یوسپین بږیري وویل:

نني ځوانان اوسپني او درانده شیان پورته کولی شي،

خود سحر په اذن سره نه شي کولای چې له ځانه برسېرن پورته کړي.

*****

**فرق:**

فرق د هغه چا ترمنځ چې دخپلو مینوالو دشمېر دزیاتولو لپاره لیکنې کوي او هغه څوک چې ټولنې د اصلاح اونیکیو دخپرولو په خاطر لیکنې کوي دادي:

- لومړی: د خلکو دغوښتونو بندیوان دي.
- دوهم: پاچا دی که څه هم خلک یې نه پېژني.

*****

**ناسمه حالات:**

له مرغانو مه پوښتۍ چې ولې یې خپل استوګنځایونه پرېښودل، بلکې د هغې ظروفو او حالاتو وپوښتۍ چې دوی یې کوچ کونې ته اړ کړل.

*****

**نصیحت:**

که چېرته ستا د ورځني پلان لومړنۍ پریکړه دسحر لمانځه ته راویښیدل نه وي،
نو د پاتې ورځې پلان دې هیڅ ارزښت نه لري.
(ځکه ته دکامیابۍ په پیل کې پاتې راغلی یې).

*****

**د پند خبره:**

هرې کندې ته له غورځیدو څخه قدم ساتل کیږي بې له قبره،
ځیرکه هغه دی چې دغه کندې ته دغورځیدو لپاره تیاري وکړي،
ځکه انسان به په ټولو مخکنیو کارونه ښپیمانه وي له هغې پرته چې د الله جل جلاله درضا لپاره یې کړي وي.

*****

**د نوي ورځ پیل:**

کله چې دې نوی ورځ پیل کړه،
معنی دا چې الله تعالی دې په عمر کې یوه ورځ د دې لپاره ورزیاته کړه، چې ترڅو توبه وباسي او خپل نیک اعمال لا زیات کړي.

باید دغه درکړل شوي فرصت بې ځایه له لاسه ورنه کړې.

*****

**تل پاتې نیکي او ګناه:**

په خواله رسنیو کې دخپلو مطالبو خپرولو سره محتاط اوسئ؛
که د مرګ وروسته،
تل پاتې نیکي(صدقة جارية) نه شي پریخودای، نو باید کوښښ وکړئ چې تل پاتې ګناهونه (ذنوب جارية) هم پرې نږدئ.

******

**د خلکو رضایت:**

دکامیابۍ راز نه پیژنم،
خو دناکامۍ راز د ټولو خلکو د رضایت هڅه ده.

*****

**د الله جل جلاله ذکر:**

نیکمرغي، ډاډ، سکون او نفسي راحت یوازې دالله جل جلاله په ذکر(یادونه) کې دی.

*****

## د بدبختیو لامل:

دټولو بدبختیو لامل دالله جل جلاله له ذکر (یاد)څخه مخ اړونه ده.

*****

## اخلاقي ناروغي:

ناروغي یوازې په بدن پورې تړاو نه لري،
بلکې اخلاقي ناروغي هم شته. کله چې دې بد اخلاقه انسان ولید
نو دالله جل جلاله له درباره ورته روغتیا وغواړه،
او د الله تعالی ډیره زیاته شکریه اداء کړه چې له دغه مرضه یې
ژغورلی یې.

*****

## رب د نافرمانۍ لامل:

که چیرته انسان دخپل رب لویي او عظمت پیژندلی، نو هیڅکله به
یې هغه د نافرمانۍ جرأت نه وی کړي.

*****

**دخپلوانو ناوړه سلوک:**

د خپلوانو دغدر او فريب څخه مه حيرانېږئ،

ځکه له تاسو مخکې يوسف عليه السلام سره خپلو وروڼو چل او فريب وکړو،

سره له دې چې هغه يو پيغمبر و.

******

**خپلې ستونزې خپله حلول:**

ځان عادت کړه چې خپل زخمونه پخپله وگنډې، ترڅو بل څوک ستا د درد حقيقت او سختوالي ونه پېژني لکه ته چې پېژنې، ځکه هرکله چې پردی لاس ستا له زخم څخه لگيږي لا زيات به درديږي.

*****

## لوړ او پاک نفسه انسان:

په خلکو کې لوړ او عالي هغه دی
((چې دخلکو په اړه کمې خبرې کوي))
او پاک نفسه هغه دی
((چې په خلکو نیک گمان کوي))
او تقواداره هغه دی
((چې دخلکو په خدمت او مرسته کې هلې ځلې وهي))

*****

## له ځینو خلکو مرسته مه غواړه:

دڅلورو کسانو نه د هیڅ شي په اړه مرسته مه غواړه سره له دې چې دمشکل حل دې دهغه په لاس کې وي:

- کینه گر.
- منافق.
- ذلیل.
- بخیل.

*****

**د احترام پر ځای يې سپکاوی مه کوئ:**

شرمخ سره له دې چې ستر خطر دي خو خلک يې ستاينه کوي،
او سپی سره له دې چې د خلکو څوکی کوي خو دوی يې سپکاوی کوي،
همداسې ډېر خلک دهغه چا سپکاوی کوي چې خدمت يې کوي،
او هغه چا ته احترام لري چې سپکاوی يې کوي.

*****

د خاوند او مېرمنې ترمنځ اړيکو د نړېدو تر ټولو ستر لامل د فاميل او اولادونو په مخ کې د دوی بې ځايه جنجال او سپکې سپورې خبرې ويل دي.

**وخت د ارزښت په اړه د اسلامي علماوو او غربي پوهانو نظرونه:**

**لومړی: وخت د اسلامي تاریخ پاڼو کې:**

(١) ابوبکر رضي الله عنه وایي:«الله تعالی لپاره د ورځې خپل عمل دی چې د شپې نه قبلوي او د شپې خپل عمل دی چې د ورځې نه قبلوي».

(٢) عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وایي:« په هیڅ څه دومره نه ښپیمانه شوی لکه په هغه ورځ چې لمر یې پریوځي، عمر مې کم شي او عمل مې زیات نه شي».

(٣) عمر بن عبد العزیز رحمه الله وایي:« شپه او ورځ لګیا ده ستا عمرکموي، ته په هغې کې نیک عمل وکړه».

(٤) حسن بصري رحمه الله وایي:« ای بنی ادمه! یقینا ستا عمر څو ورځې دي، هره ورځ چې تیرېږي ستا د ژوند یوه برخه هم له منځه ځي».

(٥) ځینو ویلي دي:«ما داسې خلک لیدلي ول چې له درهم او دینارو څخه به یې زیات د خپل وخت ساتنه کوله».

(۷) أبو العلاء المعري رحمه الله وايي:« درې شيان نه راستنيږي: وخت، ښايست او ځواني».

(۸) يحيى بن هبيره رحمه الله وايي:« وخت هغه سرمايه ده چې بايد ساتنې ته يې پاملرنه وشي خو زه وينم چې له تاسې څخه ډېر په اسانۍ ضايع کيږي».

(۹) ځينو حکيمانو ويلي دي:« څوک چې يوه ورځ پرته له دې تېره کړي چې کوم حق ونه سپاري، کوم فرض اداء نه کړي، کوم د خير کار ترسره نه کړي او کوم علم حاصل نه کړي نو ده د خپلې ورځې نافرماني وکړه او له ځان سره يې زياتی وکړ».

(۱۰) د وخت په اړه مأثوری ويناوې:

- د وخت ضائع کول د بدبختۍ نښه ده.
- وخت سره زر دي.
- وخت د تورې په څېر دی، که ته يې پرې نه کړې نو تا پرې کوي.
- د نن کار سبا ته مه پرېږده».

(۱۱) ابن الجوزي - رحمه الله- د وخت په اړه وايي:« انسان ته پکار دي چې د زماني ارزښت او د وخت قدر وپېژني، د الله تعالی

له اطاعت پرته يوه شيبه هم ضايع نه کړي، لومړيتوب ته په پام په کې غوره کړنه او وينا وړاندې کړي، بايد د نيکۍ په کارونو کې يې نيت سست نه وي تر څو بدن يې له کولو څخه عاجزه نه شي، يقينا سلفو به د خپل وخت له هرې شيبې څخه ګټه اخستله، له عامر بن عبد القيس څخه نقل دي، يو سړي ورته وويل: ماته څه ووايه، هغه ورته وويل: لمر راونيسه».

**دويم: وخت د غربي پوهانو له نظره:**

(۱)« ګډوډي هله عامه شي کله چې مونږ وخت تصادف ته پرېږدو» فکتور هوجو.

(۲) ايا په رښتنې د ژوند سره مينه لرې؟ که داسې وي نو وخت بې ځايه مه تېروه ځکه وخت د ژوند اصل او جوهر دي» فرانکلين.

(۳) په ښه توګه د وخت حفاظت او ساتنه وکړه، ويې شاره، دغه کړنه د هر ساعت او دقيقه سره وکړه، ځکه وخت دی له ګوتو څخه داسې وځي لکه خوی مار، د خپل وخت هرې دقيقی ته د ارزښتناک او سپېڅلي شي په نظر وګوره، هغې ته اهميت، ځرګندتيا او اهتمام ورکړه» ثومان مان.

(٤) هغه ستونزه چې زمونږ په نفسونو کې پټه ده، دا نه ده چې مونږ وخت نه لرو، بلکې ستونزه له وخت څخه په ښه شکل د ګټې اخستنې په نه کیفیت کې ده، د وخت- د مال برعکس- جمع او ذخیره کول ناشوني دي، ځکه مونږ یې په مصرف مجبوره یو، لکه په یوه دقیقه کې د ٦٠ ثانیو د سرعت په څېر، که زمونږ خوښه وي او کنه، خو داسې ښکارې چې وخت د ارزښت پوهې ته کم پام شوي، او دهغې په ناسمه توګه مصرف ته زیات» د.ر.أ ماکینزي.

(٥) مونږ نشو کولای چې د دقیقو ستن کنترول کړو، نو بیا ستونزه د ساعت په اداره کولو کې نه ده، بلکې په مونږ کې ده چې ځانونه څنګه د ساعت موافق عیارکړو»د.ر.أ ماکینزي.

*****

## د چوپتیا په اړه د سلفو ګټورې ویناوې:

د هرې قضیې او حالت په وړاندې به انسان د ژبې استعمال له درې حالاتو خالي نه وي:

- اقرار کول.
- انکار کول.
- چوپ پاتې کیدل.

(۱) ابو العتاهیة وایي: څوک چې چوپ پاتې شو نجات یې وموند، چاچې د خیر او نیکۍ خبرې وکړې ښېرازه شو، چاچې له الله تعالی سره رښتنولي وکړه سرلوړي شو ، چاچې د علم طلب وکړ پوهه یې ترلاسه کړه، چا چې له خلکو سره ظلم وکړو بد یې وکړل، چا چې له خلکو سره نرمي وکړه په رحمت کې شو، چا چې غوږ ونیو نو پوهه شو.

(۲) أبو الذیال وایي:چوپتیا داسې زدکړه لکه څرنګه چې خبرې زده کوي، که خبرې درته لاربښوونه کوي نو چوپتیا دې ساتنه کوي، په چوپتیا کې به دوه ښېګڼې ترلاسه کړې:

- له هغه چا به زدکړه وکړي چې له تا پوهه دی.
- او د هغه چا له جهالته به خلاص شي چې له تا ناپوهه دی.

(۳) له أکثم بن صیفی څخه وپوښتل شو په انسانانو کې دې څومره نیمګړتیاوې پیدا کړې؟هغه ځواب ورکړ: له شمېرولو زیاتې، خو ما چې شمېرلي اته لکه عیبونه دي، چې دغه ټول د ژبې په ساتنه پټېږي.

(٤) سلمان فارسي رضی الله عنه ته یو سړي وویل: ماته نصیحت وکړه! هغه ورته وویل: خبرې مه کوه. هغه وویل: څوک چې د خلکو ترمنځ اوسېږي نه شي توانیدلای چې خبرې پرېږدي. سلمان فارسي ورته وویل: که چېرته دې خبرې کولې نو حق وایه او یا چوپ پاتې شه.

(٥) ابو بکر رضي الله عنه به خپله ژبه ونیوله او ویل به یې: دې زه له ستونزو سره مخامخ کړی یم.

(٦) ابن مسعود رضي الله عنه به ویل: زما دې په الله تعالی قسم وي چې له هغه پرته بل څوک د عبادت مستحق نشته، د ځمکې پرمخ له ژبې پرته بل څه د اوږد بند وړ نه دي.

(٦) وهب بن منبه وايي: ټول حکماء په دې متفق دي چې چوپتیا د پوهې او حکمت اساس دی.

(٧) شمیط بن عجلان وایي: ای بنی ادمه! ته نه یې چوپ شوی، مگر په امن شوی یې، کله چې خبرې کوي نو احتیاط وکړه، یا به خبرې ستا لپاره دلیل وي او یا به پر تا دلیل وي.

(٨) فضیل بن عیاض ویلي دي: حج او د الله جل جلاله په لار کې څوکۍ اوجهاد کول دژبې له بندولو سخت نه دي، کچیرته د خپلې ژبې په اړه درسره فکر پیدا شو ، نو ته په یو سخت او اړین فکر کې یې.

(٩) له عبد الله بن المبارک رحمه الله څخه لقمان حکیم د وینا اړه وپوښتل شو چې خپل ځوی ته یې ویلي : که چیرته خبرې کول له سپینو زرو دي نو چوپتیا له سرو زرو څخه ده، عبد الله بن المبارک ورته وویل ددې معنی دا ده: که الله تعالی د بندگۍ خبرې له سپینو زرو دي نو هغه د نافرمانۍ خبرې پریښودل له سرو زرو څخه دي، ځکه دا دې خبرې ته ورگرځي چې له گناهونو څخه ځان ساتل غوره دي له نیکیو کولو نه.

(۹) مُوَرِّق الْعِجْلِي -رحمه الله- وايي :هغه څه چې زه يې د لسو کلونو راهيسې د کولو په هڅه کې يم خو تر اوسه پورې پرې نه يم توانيدلای،
(المعلى بن زياد) ترې وپوښتل دا کوم کار دی ای أبا المعتمره ؟
هغه وويل : د بې ځايه خبرو چوپ پاتې کيدل ".
طبقات ابن سعد (۷/ ۲۱۳).

**ايا خبرې کول غوره دي که چوپتيا؟**

(۱۰) د احنف بن قيس په وړاندې يادونه وشوه چې خبرې کول غوره دي اوکه چوپتيا؟ ځينو وويل: چوپتيا غوره ده احنف بن قيس وويل خبرې غوره دي، ځکه د چوپتيا ګټه له خپل خاوند پرته بل چاته نه وي، او غوره خبرې هر اوريدوونکي ته ګټورې وي.
(۱۱) د عمر بن عبدالعزيز په مخ کې يو عالم وويل: له پوهې سره چوپتيا داسې ده لکه سره د علمه خبرې کول، عمر بن عبد العزيز ورته وويل: زه اميد لرم چې له دې دواړو څخه به په ورځ د قيامت سره له علمه خبرې کوونکی غوره وي، ځکه د خبرو ګټه يې نورو ته ده او دچوپتيا ګټه يې ځانته ده،

هغه ورته وویل: ای امیر المؤمنینه فتنې د وینا په اړه څه وایې: نو عمر بن عبد العزیز په ژړا شو.

(۱۲) عمر بن عبد العزیز رحمه الله ویلي دي:" څوک چې خپلې خبرې له عمله حساب کړي، پرته له ګټورې وینا به یې خبرې کول کم شي، ځکه زیاتره خلک خبرې له خپل عمل څخه نه حسابوي، په هغه کې له حده زیاتی کوي او په اړه یې فکر نه کوی.

(۱۳) له سلیمان بن عبد الملک څخه نقل شوي چې ویل به یې:" چوپتیا د عقل خوب او خبرې یې ویښوالی دي، چې یو حالت له بل حالت پرته نه بشپړېږي، خبرې او چوپتیا دواړه اړین دي.

(۱٤) خو دچوپتیا په هکله غوره وینا د عبید الله بن أبی جعفر ده چې وایي: کله چې یو څوک په مجلس کې خبرې کوي او له خپلو خبرو په تعجب کې شي نو چوپ دې شي، او که چوپ وي او له خپلې چوپتیا په تعجب کې شي نو خبرې دې پیل کړي.

هغه چوپتیا چې غوره ګڼلی شي او سلفو یې په اړه تیزي ورکړې ده: د ناروا او یا د هغه مباحو خبرو پرېښودل دي چې انسان د حرامو لور ته رابلي، او له هغه چوپتیا منع شوي ده، چې سره له

توانه د حق او يا هغه روا وينا پريښودل وي چې په هغه کې خير او شر مساوي وي.

**د نظر ساتنې په اړه د سلفو ګټورې ويناوې:**

(۱) أنس -رضي الله عنه- ويلي دي: کله چې دې ترځنګ ښځه تريږي نو سترګې پټې کړه تر څو له تا واوړي.

الورع لابن ابي الدنيا (۷۲).

(۲) ابن عمر -رضي الله عنه- وايي: د خلکو کورونو او ودانيو ته سر ورښکاره کول د امانت له ضايع کيدو شمېرل کيږي.

الورع لابن أبي الدنيا(۷۱).

(۳) له قيس بن الحارث روايت نه دي وايي: سلمان -رضي الله عنه- ويلي دي:" چې مړ شم بيا راژوندی شم بيا مړ شم بيا راژوندی شم بيا مړ شم بيا راژوندی شم دا ماته ډېره اسانه ده له دې نه چې دمسلمان عورت ووينم او يا هغه زما عورت وويني.

الزهد لأحمد (۱۹۲).

(٤) حاتم -رَحِمَهُ اللهُ- وايې: شهوت په دري ډوله دي:

- دخوراک شهوت.
- دخبرو شهوت.

- د نظر او لیدلو شهوت.

خوراک په ډاډ، ژبه په رښتیا، او نظر په عبرت اخستنې کنترول کړه.

شعب الإيمان للبيهقي (٥/٥٧١٢).

(٥) له وکیع -رحمه الله- روایت دی وایي: مونږ له سفیان الثوري سره د اختر په ورځ ووتلو نو ویې ویل: لومړی هغه څه چې مونږ به پرې نن پیل کوو د خپلو نظرونو ساتنه ده.

الورع لابن أبي الدنيا (٦٦).

(٦) أبي حکیم وایي: حسان بن أبي سنان د اختر په ورځ بیرون ووتلو کله چې کور ته راستون شو ښځې ورته وویل: څومره ښائسته ښځې دې نن ولیدې؟ کله چې یې ترې پوښتنه زیاته کړه هغه وویل: تباه شې ما له خپلې غتې ګوتې پرته بل څه نه دي لیدلي تردې چې تاته راستون شوم.

الورع لابن أبي الدنيا (٦٨).

(٧) علاء بن زیاد وایي: خپل نظر د ښځې په څروکي پسې مه پسې کوه ځکه نظر په زړه کې شهوت پیدا کوي.

الزهد لأحمد (٣١١).

(٨) إبراهيم بن أدهم ويلي دي: باطل ته ډېر کتل زړه نه د حق پېژندل ختموي.
حلية الأولياء (٨/٢).

(٩) مجاهد -رحمه الله- وايي: له حرامو څخه نظر ساتل د الله جل جلاله مينه په ميراث کې پرېږدي.
فتاوى ابن تيمية (١٥/٣٩٤).

*****

**ګناهونو دزيان او ناوړتيا په اړه د علماوو ګټورې ويناوې:**

**په ګناه استمرار:**

په وړو ګناهونو هميشوالي انسان دلويو او کبيره ګناهونو کولو ته اړ باسي.

*****

**له ګناه ځان ساتل:**

ګناهونه سپک مه ګڼه،
ځکه کله دوړې ګناه پيل هم ژوند د ختميدو لامل وي.

****

**د رب لويي:**

دګناه لږوالي او وړکوالي ته مه ګوره،
بلکې دهغه رب لويي او عظمت ته وګوره چې ته يې نافرماني کوې.

*****

## د نيکمرغۍ بشپړتيا:

دانسان نيکمرغي په دري شيانو بشپړيږي:

- دگناه څخه وروسته توبه ويستل.
- دنعمت شکريه اداء کول.
- په سختۍ اوتنګستيا صبر کول.

*****

## د ګناهونو ناوړه پايله:

څومره خلک دي چې په غاړه کې دګناهونو زنځير په اچولو سره يې شيطان د اور لورې ته راکاږي، ابن الجوزي رحمه الله وايي: ګناهونه دګناهنګار په غاړه کې دزنځير په څېر وي چې پرته له استغفار او توبې نه لېري کېږي.

*****

## ګناهنګار ته ګناه څخه د خلاصي دعا کول:

ابن مسعود- رضي الله عنه - وايي:کله چې تاسو يو ګناهنګار د ګناه په کولو ووينئ، دالله تعالی له لورې ورته بد دعايي مه غواړئ او

مه ورته کنځل کوئ، بلکې دعا ورته وکړئ چې الله جل جلاله ورته له دغې ګناه څخه خلاصي او نجات ورکړي.
التوبة لابن أبي الدنيا(مخ ۹۹).

*****

**ګناهونه پرېښودل د ذهنی پیاوړتیا لامل ګرځی:**

له إمام مالك څخه وپوښتل شو حافظې د پیاوړتیا لپاره څه شی ګټور دی؟!
هغه ځواب ورکړ: که کوم شی ورته ګټه رسوي نو هغه دګناهونو پرېښودل دي.
الجامع للخطیب البغدادی (۲/۲۸۵).

*****

**له خپلی ګناه ویریدل د ایمان نښه ده!**

ابن مسعود -رضي الله عنه- وايي: مؤمن ته خپله ګناه داسې ښکاری، لکه چې دیوې غټې ګټې(تږې)لاندې وي او ويرېږي چې هغه پرې را ونه غورځېږي، او کافر خپله ګناه داسې ويني لکه مچ چې يې د پوزې تر څنګ تېر شي.

*****

**گناه ته پامـــــلرنه:**

عون بن عبد الله -رحمه الله- وايي: خپلې گناه ته پاملرنه گناه د پریخودو لامل کیږي، او په گناه پښیماني د توبې ویستلو کیلي ده".
التوبة لابن أبي الدنيا (١٣٨).

*****

## ذکر د اړینو فائدو په اړه ګټورې ویناوې:

- ابن عثیمین رحمه الله وایي :

د سحر او ماښام أذکار په ژغورنه کې د یأجوجو او مأجوجو له دیوال څخه هم د هغه چا لپاره پیاوړي دي چې له حاضر زړه نه یې ووایي..

- ابن الصلاح رحمه الله وایي:

څوک چې د سحر او ماښام د اذکارو ، دفرضي لمانځه وروسته د اذکارو او د خوب د اذکارو پابندي وکړي، د الله جل جلاله له ذکر کونکوڅخه شمېرلې شي...

- ابن کثیر رحمه الله وایي :

د اذکارو جاکټ واغوندئ تر څو مو د پېریانو او انسانانو له شرونو وژغورئ ،روحونه مو په استغفار(بښنه) پټ کړئ تر څو د شپې او ورځې ګناهونه مو ورژوئ،

کچېرته درته مصیبت در ورسي چې تاسو یې بد ګڼئ زر دي چې تاسې به راضي او باوري شئ چې دا هغه خیر دی چې د رب له

لورې تاسې ته مقدر شوی دی، ځکه تاسې په رب پورې پناه نیوله ده.

- علامة ابن عثیمین رحمه الله وایې :

" د قران کریم زیاته لوستنه زړه د ثبات او سلامتیا تر ټولو ستر سبب دی ".

نورعلی الدرب (۲۰\۱۲).

****

**ستره جفا:**

ابن حبان رحمه الله وایي:

" له دوستۍ وروسته دښمني ستره جفا او تېروتنه ده، عقلمند ته یې کول نه دي پکار، که چېرته وخت مو د هغې سپریدولو ته اړ کړي نو د سولې لپاره لار پریږدئ".

روضة العقلاء( ۱۰۲).

*****

## مسافر څوک دی؟

ترکماني الحنفي رحمه الله وايي:
« مسافري او ناشناوالی له کورنۍ او هیواد څخه لریوالی او له یو ځای څخه بل ځای ته سفر کول نه دي، بلکې مسافر هغه څوک دی چې په قران او سنت عمل کوي او داسې څوک نه مومي چې پدې لاره کې ورسره مرسته وکړي، د خلکو ترمنځ ناشنا وي خو الله جل جلاله او د هغه رسول ته تر ټولو نږدې وي».
اللمع في البدع والحواث (٥٨٤).

*****

## د جومات پابند اوسئ:

سلمان فارسي أبو الدرداء ته ولیکل، (رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا):
ای ورورہ!
دجومات پابند اوسه، یقینا ما له رَسُولَ اللهِ صَلّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلّم څخه اوریدلی دی چې فرمایل یې: "جومات د هر تقواداره او پرهیزگاره کور دی".

بزار روایت کړی (۲۵٤۹)، وګوره " السلسة الصحيحة" د امام ألباني(رحمه الله) (۷۱٦).

*****

**بد ورور:**

ابن حبان رحمه الله وايي:
وروړنه د سختۍ او اړتیا پر وخت پیژندل کیږي، ځکه په راحت کې خو ټول خلک دوستان وي، بدترین ورورنه او دوستان هغه دي چې د تکلیف او ضرورت په وخت کې خپل ورور ذلیله او رسوا کوي.
روضة العقلاء (۲۲۱).

*****

**ریا ځخه د ځان ژغورولو په موخه خپلې نیکۍ پټول:**

أبي حازم المديني ويلي دي:
خپلې نیکۍ داسې پټې کړه لکه ځرنګه چې خپل ګناهونه پټوي.
سير اعلام النبلاء ( ٦/١٠٠).

*****



المسوحة ضوئيا بـ CamScanner

## ریښتنې مړ څوک دی:

امام ابن الجوزي -رحمه الله- ویلي دي :
" هغه څوک مړ نه دی چې له بدن څخه یې روح ووځي ،
بلکې رښتني مړ هغه څوک دی چې په ځان د الله تعالی حقوق نه پېژني".
التذكرة( ص١٨ ).

*****

## هڅه وکړئ:

چې ځانته وفادره دوست پیدا کړئ،
ځیني سلفو ویلي دي:"ستره توښه وفاداره ورور درلودل دي".
أداب الدين والدنيا (مخ١٦١ ).

*****

## دځپل ځان کمی پېژندل:

امام الشاطبي د حمدون القصَّار- رحمهم الله - نه نقلوي :
« څوک چې د سلفو ژوند لیک ته وگوري د سړیتوب له مرتبې څخه به دځپل ځان وروستوالی او کمی وپېژني ».
كتاب الإعتصام( ص١٢٧ ).

*****

## دچا سپکاوې مه کوئ:

امام مناوي - رحمه الله - وايي:

" انسان لپاره مناسب نه ده چې د چا سپکاوې وکړي، ښايي سپکيدونکی شخص پاک زړی، نيک عمله، او سپين نيتی وي، الله جل جلاله د بندگانو سپکول د پښيماني، ذلت او رسوايی سبب گرځي".

فيض القدير ( ٥/ ٣٨٠).

*****

## په عبادت کې ده سنت طريقه معتبره ده:

امام البانی -رحمه الله- وايي:

"په عبادت کې ډېروالی معتبر نه دی، بلکې معبتره دا ده چې عبادت دسنت په طريقه او له بدعت څخه لېري وي".

ابن مسعود رضی الله عنه هم دې خبرې ته اشاره کړي، فرمايي:" په سنتو کې ميانه روي په بدعت کې له هڅې او زيار څخه غوره ده".

السلسلة الصحيحة(٥/١٤).

*****

## دخلکو رضايت:

حسن بصري- رحمه الله-وايي:

"ما چې کله خلک وليدل چې له خپل خالق څخه نه رضا کېږي، نو پدې پوهه شوم چې ددې په څېر يې له مخلوق څخه هم نه رضا کېږي".

کذب المفتري(٤٢٢).

*****

## پوره بدله:

علامه ابن عثيمين رحمه الله وايي:

پدې پوهه شه که چېرته دې دخپل مسلمان ورور عيبونه خپاره او ښکاره کړل!

هرومرو به الله جل جلاله پر تا داسې څوک مسلط کړي،

چې ستا عيبونه او نيمګړتياوې به خپري او خلکو ته ډاګه کړي.

تفسير سورة الحجرات (١/٥٢).

*****

**اتفاق:**

ابن عثیمین رحمه الله وایي:
" هر هغه څه چې د خلکو ترمنځ د کینې، جلاوالي، او د دښمنۍ لامل ګرځي شریعت یې په کلکه ردوي، ځکه د اسلام سپیڅلي دین اساس د مسلمانانو ترمنځ په یووالي، محبت او دوستۍ بنا دي".
الشرح الممتع( ١٤٣/٨)

*****

**دفکر وړ ده:**

ایا زموږ په ژوندیو تورسرو غیرت کول مهم نه دي؟
ښځینه مړې د تدفین پر مهال یې محارم د قبر څنډو ته راټول شوي وي، د مړې له ځای یې کړۍ تاو کړې وي ترڅو پردی څوک ورنږدې نشي.
پرلپسې په لوړ غږ اواز کوي، جنازه پټه کړئ قبر ته پرده وکړئ.
دا ټولې کړنې پخپلې تور سرې باندې دوی د غیرت څرګندونه کوي پداسې حال کې چې هغه په کفن کې مړه پرته وي.

خو په ژوندیني بیا د ډېرو کړنه ددې برعکس وي خپلو تورسرو ته د بې پردګۍ، مخ د لوڅولو او هغه ناروا لباسونو د اغوستلو اجازه ورکوي چې هغوی بدن د اندامونو ښکارندوی کوي.

*****

**دردناک حقیقت:**

مونږ هغه امت وو چې څه وخت مو ګډې اوبزې څرولې،
د اسلام په راتلو سره مونږ داسې امت وګرځیدلو چې د امتونو مشري او ساتنه مو پیل کړه،
خو کله چې مو اسلام ته شاه کړه د ګډو په څېر مو نور امتونه څروي.

*****

**اولاد  د اصلاح لامل:**

مجاهد رحمه الله وایي:
یقینا الله جل جلاله دیو چا د دینداری او نیک عملی له امله د هغه بچیان او لمسیان صالحه او نیک عمله کوي.
الحلیة لأبو نعیم (۳/۲۸۵)

*****

## تعصب:

باید تعصب یوازې د دلیل لپاره وي نه د خلکو د نظرونو لپاره

امام احمد بن حنبل - رحمه الله- وايي:

- زما د مالک، شافعي، اوزعي او ثوري- رحمهم الله- تقليد مه کوئ، بلکې علم له هغه ځایه څخه واخلئ چې هغوی ترې اخستي دي.
- بیا وايي: د اوزعی رایه، د مالک رایه، او د ابو حنیفه- رحمهم الله- رایه ټولې اراء او نظرونه دي، چې زما په وړاندې یو شان دي، بلکې حجت او دلیل یوازې په اثارو کې دی.

صفة الصلاة للألباني.

*****

## لنډه کیسه خو د ژوند تګلاره ټاکي:

یو سړی عبد الملك بن مروان ته راغلی وویل:

زه دې له یو کاره خبروم هغه ورته وویل:

خبر مې کړه خو دروغ به نه وایې، غیبت او منافقت به هم نه کوې، هغه وویل: بیا خو ماته بېرته د ستنیدو اجازه راکړه.

*****

**د علم په خپرولو کې سستي مه کوئ:**

- ابن المبارك رحمه الله وايي :

« له پیغمبری څخه وروسته له علم نشرولو او خورولو بله غوره درجه او مرتبه نه پېژنم ».

تهذیب الکمال (١٦/٢٠).

- ابن الجوزي رحمه الله وايي:

« که څوک خوښه ګڼي چې له مرګ څخه وروسته یې نیک عمل پرې نه شي نو علم دې خپور کړي ».

التذکرة (٥٥).

*****

## عمل او وینا مو سر یو کړئ

زبید الیامي رحمه الله وايي:

د ابن مسعود رضی الله عنه خبرې شل کاله چوپ پاتې کړم او هغه دا: " د چا وینا چې له عمل سره برابره نه وي هغه خپل ځان رټي".

*****

**ګټوره فائده او قیمتي وینا:**

سري السقطي وايي:

د شبهاتو په پرېښودولو نه شي توانیدلای مګر هغه څوک چې شهوات پرېږدي.

الطیوریات( ۱/۵۹)

*****

**بدګماني:**

بکر المزني رحمه الله وايي:

" له هغه خبرو ځان وساته که په کې په سمه وې نو ثواب یې نه درسي او که په کې په خطا وې نو ګناهګارېږې، چې هغه پخپل مسلمان ورور بد ګماني کول دي.

رواه ابن سعد في الطبقات( ٧/١٥٧)

*****

## د نصيحت او نيوکې منل:

ابن قدامة المقدسي - رحمه الله - وايي:

"سلفو به هغه څوک خوښول او مينه به يې ورسره لرله چې هغوی ته به يې د هغوی نيمګړتياوې او عيبونه ورپه ګوته کول،

خو نن سبا په غالبه توګه مونږ ته تر ټولو د بغض او کينې وړ هغه څوک وي چې مونږ ته زمونږ نيمګړتياوې او عيبونه راښايي".

منهاج القاصدين (١٩٦)

*****

## له هغه چا سره مينه وکړئ چې درته سمه لار ښايي:

علامة ابن عثيمين رحمه الله وايي:

«هر څوک چې له تاسره په دين، نصيحت، نيکيو ته په هڅولو او له بديو څخه په منع کولو کې ښېګړه او مرسته وکړي،

نو دا تقاضا کوي چې ته له هغه سره مينه او محبت وکړې،

په اوسني وخت کې ځينو خلکو د کړنې پر خلاف،

چې ته ورته په نيکيو امر وکړې او له بديو څخه يې منع کړې، او ورته د خير او سمې لار لاربښوونه وکړئ، نو زړه درته له کينې او بغض ډکوي، چې دا کار هم د دين او هم د عقل خلاف دي».
شرح اقتضاء صراط المستقيم (ص ۲۷۹).

*****

**ريښتني وررلي:**

امام ابن باز رحمه الله وايي:
«ورور دې هغه دی چې درته يې نصيحت او يادونه وکړه او له بدو يې خبر کړي، نه هغه چې له تا ناخبره، لا پروا او درته چاپلوسي کوي، په رښتنی ورور دې هغه دی چې درته نصيحت او يادونه کوي، دالله جل جلاله لور ته دې رابلي،
د خلاصون لار درښايي ترڅو يې خپله کړي،
د هلاکت له لارې دې ويروي او دهغې ناوړه پايله درښايي ترڅو ترې ځان وژغورې».
فتاوى ابن باز (۱٤/۲۱).

****

## حق باید له هر چا ومنل شي:

فضیل بن عیاض رحمه الله نه د تواضع په اړه وپوښتل شو، هغه وویل:« حق ته تیټدل، او ورته غاړه کیښودل، او له هر چا څخه د حق منل».

تهذیب المدارج (٢/٦٨٠).

*****

## پنځه ستر خویونه مو ولیان کوي:

امام سیوطي رحمه الله وایي:

د ماشومانو پنځه خویونه که چیرې لویانو د خپل رب سره درلودلی نو ولیان به ول:

- د رزق پروا نه لري.
- د ناروغۍ پر وخت له خپل رب څخه فریاد نه کوي.
- په ګډه خوراک کوي.
- د ویرې پر وخت یې له سترګو اوښکې رواني وي.
- د جنګ او جګړې پر وخت د سولې په لور منډه کوي.

حسن المحاضرة (١/٥٢١).

*****

## نيت او عمل مو يوازې د الله تعالى لپاره ځانگړى کړئ:

امام شافعي رحمه الله وايي:
«اى ابو موسى! که خپل ټول کوښښ وکړې چې ټول خلک خوښ وساتې نو دا ناشونې ده،
کله چې داسې ده نو خپل عمل او نيت يوازې د الله تعالى لپاره خالص کړه».
شعب الإيمان للبيهقي(١٠/٢٠١).

*****

## د اخرت په فکر کې شئ:

عمر بن عبد العزيز رحمه الله وايي:
اخرت مو سم کړئ دنيا به مو سمه شي، او د باطن اصلاح وکړئ ظاهر به مو اصلاح شي.
حلية الأولياء٥(/٢٦٦).

*****

**د نفس رضايت:**

ابن الجوزی رحمه الله وايي:

د انسان ستر مصيبت د خپل نفس رضا کول او پخپل علم قناعت کول دي، چې دا ستونزه په ډېرو خلکو کې عامه شوي ده.

صيد الخاطر ابن الجوزی (مخ ٤٧٠)

*****

**رښتني نيکمرغي:**

عبد الرحمن السميط رحمه الله وايي:"زه پدې وپوهيدلم چې ريښتني نيکمرغه د نورو زړونه خوشحالول دي".

*****

**له جاهله گيله مه کړئ:**

إمام الذهبي- رحمه الله- وايي :

جاهل د خپل ځان رتبه او قدر نه پيژني، نو څرنگه به د بل چا رتبه او احترام وپيژني.

سير أعلام النبلاء (١١/٣٢١).

*****

**له اسلام پرته بل دین الله پاک ته د منلو وړ نه دی:**

علامـــه ابن عثیمین - رحمه الله- وایي:
که هر څوک فکر کوي چې د ځمکې پر مخ الله جل جلاله ته د اسلام پرته بل دین د منلو وړ دی، هغه کافر دی چې په کفر کې یې هیڅ شک نشته دی.
مجموع الفتاوی (٣/٢١).

*****

**دبدعاتو مخنیوی:**

امام الأوزاعي رحمه الله وایي:
"کله چې بدعت پیل شي، او اهل العلم یې انکار ونه کړي، نو وروسته بیا سنت وګرځي".
التعدیل والتجریح للباجي المالکي (٤٦/١).

*****

## د عبادت خوند:

امام أحمد بن حرب رحمه الله وايي:

"پنځوس کاله مې د الله جل جلاله عبادت وکړ،

خو دعبادت خوند مې تر هغه احساس نکړ ترڅو چې مې لاندې شیان پریښودل:

- د خلکو خوښه مې پریښوده ترڅو وتوانیدم چې حق ووایم.
- د بې لارې خلکو ملګرتوب مې پریښود نو دنیکانو له ملګرتیا برخمن شوم.
- د دنیا خوندونه مې پریښودل پرځای مې داخرت خوندونه وموندل.

سیر أعلام النبلاء (٣٤/١١).

*****

## د ژبی کنټرولول:

مالک بن دینار رحمه الله وایي:

سلفو به ددري خبرو سپارښتنه کوله:

- د ژبې په کابو کولو.
- داستغفار په زیاتوالي.
- او په ځانلوالي.

صفوة الصفوة (١٦٤/٢).

*****

## د ځان اهمال دټولنې اهمال دي:

ابن بادیس وایي:

" هغه څوک بل چاته ګټه او فایده نه شي رسولای چی دځان په اړه لا پروا وي،

په عقلي، روحي او بدني لحاظ ځان ته پاملرنه ددې لامل کیږي چې انسان دې دنورو په اړه هم خیرخوا واوسي".

*****

## د زړونو ثبات:

امام أحمد بن حنبل- رحمه الله- ته دفتنې پر وخت وويل شو:
ايا نه ګورې څرنګه باطل پر حق بر لاسي شو؟
هغه ځواب ورکړ:"هېڅکله داسې نده، تر څو چې زړونه ثابت وي نو تر هغې به حق غالب وي"
ربه ته مو پر حق باندی زړونه ثابت کړې.

*****

## د مرګ په اړه د خلکو يقين:

عمر بن عبد العزيز (رحمه الله) وايي:
ما داسې يقين نه دی ليدلی چې د شک په څېر وي، پرته د مرګ په اړه دخلکو د يقين نه، له دې امله مرګ ته تياری نه نيسي.

*****

## ديني پوهه مو فتنو څخه د خلاصی لامل ګرځي:

مقبل الواداعی رحمه الله وايي:
مونږ دفتنو په زمانه کې اوسو، واجب ده چې د الله پاک په دين کې پوهه تر لاسه کړو، تر څو وکولای شو په پوهې او بصيرت سره له فتنو لېري پاتې شو.

قمع المعاندين (٦١).

*****

**زړه دنرموالي اودرملنې دوه ستر لاملونه:**

- د قران کريم تلاوت او په لوستنه کې يې سوچ فکر كول.
- د الله پاک ذکر او يادونه.

*****

**کرسمس لمانځل:**

- دکرسمس لمانځلو دليل يې دکال پيل وي !!
- دمولد لمانځلو دليل يې درسول صلى الله عليه وسلم سره مينه وي!!
- د(مينې ورځ) لمانځلو دليل يې دمينې زياتوالى وي!!
- د مور ورځ لمانځلو دليل يې دمور سره نيکي وي!!

او همداسې نور...

- خو کله چې ورته مخې ته درسول صلى الله عليه وسلم سنت تېر شي نو دپريښودلو لامل يې سنتوالى ښايي وايي فرض خو نه دى!

الله جل جلاله فرمايي:

((فَمَالِ هَٰٓؤُلَاۤءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا))

*****

**د چغلي ناوړې پايلې:**

چا يو نيک سړي ته چغلي پيل کړه هغه ورته وويل:

دري جنايتونه دې ترسره کړل:

- زما او زما د ورور ترمنځ دې اړيکې پرېکړي.
- زما خالي زړه دمصروف کړ.
- زما په زړه کې دې خپل احترام کم کړ.

*****

**په هر حال کې د الله جل جلاله شکر ويستل پکار دی:**

يوناني حکيم وايي:

مابه ژړل کله چې به خپه ابله ګرځيدم،

خو هغه وخت مې له ژړا بس کړل، کله چې مې داسې څوک وليد چې خپو د نشتون لامله په ځنګنونو ګرځيده.

*****

## خپلو نيمگړتياوو ته پاملرنه:

عکرمة رحمه الله وايي:

"ماله هغه چا کم عقل ندی لیدلی چې دځان بدې پيژنی،خو بيا هم له خلكو غواړی چې په علم او نيكی يې موصوف كړي".

تنبيه المغترين ( ص: ٣٣).

*****

## د ښو اخلاقو ارزښت:

ابن سعدي رحمه الله وايي:

"دنفس په خوښی کې دښو اخلاقو خاص ارزښت دي، يواځی هغه خلک يي پيژنی چې تجربه كړی يي وي".

انتصارالحق : صـ (٤٦) .

*****

## د دوستی انتخاب:

امام شافعي-رحمه الله- وايي:
دانسان لپاره پکار ده چې ددوستی لپاره ریښتني او وفادره خلک وټاکی، لکه څرنګه چې دامانت ساتنی لپاره امانت داره او باوري خلک ټاکی.
[الانتقاء لابن عبد البر١٥٧].
*****

عذر وړاندې کول:
ابن حبان رحمه الله وايي:
که یو چاته دعذر وړاندی کولو موخه یوائې غرور او ځان خوښی له مینځه وړل وي،نو په هر عاقل واجب ده چې له هره تیروتنی او خطا سره عذر مل کړي.
روضة العقلاء(١٨٦).
*****

د سرلوړۍ او مشری لامل:
له ابو سفیان څخه وپوښتل شو:
دڅه لامله سرلوړی او دقوم مشر شوي؟

هغه وویل:له چاسره می بحث او جگړه نده کړی مگر داچی دسولی لپاره می لار پریښی ده.

نثر الدر(۳/ ۱٦۷).

******

د راز ساتنی اهمیت

عمر بن الخطاب – رضی الله عنه- وايې:

چاچې خپل راز پټ وساته،

اختیار به يې پخپل لاس کې وي،

اوچاچې ځان د نورو تهمت ته وړاندی کړ ، بیا دی هغه څوک نه ملامتوي چې پده بدگمانی کوي.

*****

د نبوی سنتو راژوندی کول:

علامه ابن عثیمین- رحمه الله- وايې:

دا څرگنده ده چې دنبوی سنتو په راژوندی کولو دوه ځله انسان له ثوابه برخمن کیږي:

- لومړی په سنت دعمل کولو.

- دوهم سنت دراژوندی کولو.

*****

خوراج او د مسلمانانو وژنه:

أيوب السختياني رحمه الله وايې:" خوارج په نومونو کې سره مختلف دي،خو په توره کې سره متفق دي".

يعنی ډلې او تگلارې يې سره جلا دي خو دمسلمانانو په وژنه سره يوه خوله او يوسلا دي.

الشريعة للآجري( ٥/٢٧٤).

*****

غريبی د پيغور سزا:

ابن سرين- رحمه الله- ته وويل شو: کله چې يې خپله شتمنی له لاسه ورکړه، چې تاون دی زيات وکړ.

هغه ځواب ورکړ:دا هغه گناه وه چی ما يې د څلويښت کالو راهيسی دسزا انتظار ويسته،

بيا تری دگناه په اړه وپوښتل؟

هغه وويل: ما يو چاته دناچاری او غريبی پيغور کړي و .

*****

داخلي نيمګړتيا

عبدالكريم بكار وايي:

دښمنان مو راته دروازې په سختۍ ټکوي،

خو تر هغې درانوتلو توان نلری تر څو چې مو ورته له دننه خلاصې کړي نوي.

*****

په معاصر وخت کې ستره سپارښتنه:

ابن حزم - رحمه الله تعالی -وايي:

"په حساسو مسائلو کې چوپتيا څومره غوره ده ؛ډېر خلک مو وليدل چې خپلو ژبو هلاک کړل خو داسی څوک مو تر اوسه ندی ليدلی چې چوپتيا ورته زيان رسولی وي ".

الرسائل :(١/٤٠٢) .

**********

د بدو ځواب بايد بد نوی:

يو کس يحيى بن معين ته کنځل وکړل،
خو هغه ځواب ورنکړ، چا ورته وويل چې ولې دې ځواب ورنکړ،
هغه وويل ما دا علم د څه لپاره زده کړی.
*****

د زړه شتمنی او دمال ډيريدل:
شيخ عبد الرحمن السعدی- رحمه الله- وايې:
په ريښتنې شتمنی دزړه ده نه دمال ډيريدل،
څومره شتمن او مالداره دي چې زړونه يې غريب او حرصناک وي.
*****

بيوزلي:
حاتم الأصم-رحمه الله- وايې:
له بيوزلی او غربت څخه مه ويريږه، ځکه ته الله جل جلاله له اور څخه ويرولی يې ، نه له غربت او ناچاری څخه.
*****

نیک عمله دښمن درته له بد ملګری غوره دي:
سفیان بن عیینة-رحمه الله- وایې:
ځکه نیک دښمن دی خپل ایمان دی له دی منع کوی چې تاته زیان او تکلیف درورسوي،
خو بد ملګری تاته دزیان رسیدو په اړه لا پروا وي.
*****

عمل:
مالک بن دینار -رحمه الله- وایې: "عمل د نه قبلیدو ویره سخته ده دعمل له کولو نه".
******

په نیکو کارونو کې تیزي:
إمام أحمد-رحمه الله- وایې:
کله چې د یو چا پر مخ دخیر او نیکي دروازه پرانستل شي،
نو باید د هغي په لوردی تیزي وکړي،
ځکه دا نه پوهیږي چې کله یې پر وړاندي تړل کیږي.

## کتاب الزهد

*****

دنیکی بدله:

له سکندر پاچا څخه وپوښتل شو:

په پاچایۍ کې دي کومه یوه لاسته راوړنه ده چې ته پرې ډېر خوښ یې؟

هغه وویل: پدې توانیدل تر ټو هغه چاته غوره بدله ورکړم چې له ماسره یې نیکی او احسان کړي.

*****

لویه لاسته راوړنه::

له یو حکیم څخه وپوښتل شول:

په ژوند کې دانسان تر ټولو لویه لاسته راوړنه کومه یوه ده؟

هغه په ځواب کې وویل:

په ژوند کې دانسان ترټولو ستره لاسته راوړنه دا ده چې په غیاب کې یې خلک په ښو(نیکه)یاد کړي.

**********

راتلونکي وخت:

علي - رضي الله عنه- وايي:

په تاسو داسي وخت راتلونکي دي چې:

- مشر به مو گناهنگار وي،
- عالم به مو منافق وی،
- کشر به مو دمشر احترام نکوي،
- مالدار به مو د غریب مرسته نکوي.

*****

دکینه گر انسان نښې:

لقمان حکیم وايي:

د کینه کونکی درې نښې دی:

- کله چې یي ملگری پناه وي غیبت یي کوی،
- چې حاضر شي چاپلوسي یي کوي،
- په تکلیف او مصبت یي خوشحالیږي.

*****

د لمونځ اهتمام:

سعيد بن المسيب -رحمه الله- وايي:

د ديرشو کلونو راهيسي مؤذن اذان ندي کړي مگر داچې ځه په جومات کې موجود يم.

**********

فتوی ورکول:

دهغه چا کار دي چې اهليت يې ولري:

امام مالک - رحمه الله- وايي:

ما تر هغي فتوی نده ورکړي چې ترڅو زما لپاره اويا کسانو هغي د وړتيا او اهليت گواهي نده ورکړي.

*****

دعلم اهميت:

امام أحمد بن حنبل - رحمه الله- وايي:

انسان علم ته له خوراک او څښاک زياته اړتيا لري،

ځکه خوړو او اوبو ته په ورځ کي يو ځل يا دوه ځله ضرورت پيداکيږي،

خوعلم ته دخلکو اړتيا هغوي دساه اخستلو په شمير ده.

*****

هوساينه:

أبوالدرداء-رضي الله عنه- وايي:

دهوسايني او اساني په وخت کې الله جل جلاله راوبله شايد چې دمشکل او سختي وخت کې دعا قبوله کړي.

*****

په علم عمل:

أبوالدرداء-رضي الله عنه- وايي:

ترهغې عالم نه شي جوړيدای ترڅو چې متعلم ونه اوسي، او ترهغې متعلم نه شي کيدای ترڅو چې په زدکړي علم عمل ونه کړي.

څه له دی ډير زيات ويريږم چې کله دخپل رب په وړاندی دحساب لپاره ودريږم اوماته وويل شي:"چې تاپخپل زدکړي علم څه عمل کړي؟.

*****

د اسلامی امت راتلونکی:

شيخ ابن باز-رحمه الله- وايي:

دا امت به ناروغه وي خو مري نه، په غفلت کي به وي خو ويده کيږي نه.

مه نا اميده کيږي...

خپله سرلوړي او عزت به هله ووينې چې کله د خپل رب لور ته ستانه شوي،

ځانونه مو اصلاح کړه،او دخپلو ورونو مرسته مو وکړه.

*****

يحيى بن أبي كثير-رحمه الله- وايي:

علم په جسمي راحت نه ترلاسه کيږي.

*****

د توکل مهمه فائده:

حاتم الأصم ته وويل شو توکل دی په څه بنا دی؟

هغه په ځواب کې وويل: په څلورو خويونو:

- پدی يقينی يم چې رزق می څوک نشي خوړلای، نو زړه می مطمئن شو.

• پدی پوهه یم چې زما عمل بل څوک نه کوي، نو پخپل عمل مشغول یم.
• پدې یقینی یم چې مرگ ناڅاپه راځي، زه ورته مخکوالی کوم.
• پدې پوهه یم چې د الله له نظره نشم پټیدای، نو حیاء ترې کوم.

سیر اعلام النبلاء (۱۱/۴۸۵).

*****

نورو د ناموس احترام ساتل:

عمر بن عبدالعزیز رحمه الله وایي:

«مونږ سلف لیدل چې هغوی به عبادت یواځې په روژه او لمونځ کې نه لیدلو، بلکی د خلکو له عزت او ناموس څخه ځان ساتل یې عبادت گڼل، څکه دشپې مونځ گذار او د ورځې روژدار چې د ژبې ساتنه ونه کړي، دقیامت په ورځ به له ټولو مفلس وي».

سفیان الثوري وایي: دا د چوپتیا، په کور کې دکیناستلو، او په پخپله روزۍ د راضی کیدو وخت دي تر څو چې درته مرگ راشي».
التمهید(١٧/٤٤٣).
*****

د شام جلیل القدر تابعي أبوأدریس الخولاني وایي :
په زړو او خیرنو جامو کې پاک زړه غوره دی.
له پلیت او خیرن زړه نه چې په پاکو او نویو جامو کې وی.
ابن أبي شیبة في المصنف:( ٣٦٥٢٠ ).
*****

ابن الجوزي رحمه الله وایي:
د نورو له تیروتنو سترگې پټول تل د درنو خلکو د لوړو خویونو شمیرل کیږي،
ځکه خلک تیروتنو او خطا ته وړاندې کیږي،
که یو سړی هرې تیروتنې او خطا ته متوجه شي، نو ځان او نور به ستړي کړي،

عقلمند او ځیرکه انسان باید په هره وړه او لویه خبره کې دقت ونه کړي،

لدې امله امام احمد رحمه الله ویلي:" نهه برخې ښه اخلاق له تیروتنو څخه په مخ اړولو کې دی".

******

د نورو په حق کې ظلم:

ابن سیرین رحمه الله ویلي دی:

«دا دی د مسلمان ورورو سره ظلم دی، چې تا ته معلومی بدي یي یادوئ، خیر او نیکې یې پټوئ.

صفة الصفوة( ٣/٣٥٤).

*****

غفلت:

ابن الجَوزي رَحِمَه الله وايي :

«کله چې غفلت برلاسی شي، نو یقینا بد بختی حاکمه شي».

التَذكِرة ( ١٧٨ ).

*****

د حق نه منل:

علّامة ابن عثيمين رحمه الله وايي:

حق د نه منلو درې لاملونه دی:

- ناپوهي.
- د حق په پلټنه او غوښتلو کې تفريط .
- بد نيتي او ناوړه اراده، چې څښتن يې د تعصب او خواهشاتو له امله حق پريږدي.

شرح الكافية الشافية(٢ / ١٠٨).

******

د بدعاتو درملنه:

ابن باديس رحمه الله وايي:

«شيطاني بدعاتو د درملنې لپاره د نبوي سنتو خپرول گټور علاج دي».

الآثار:(٢/٢٤٨).

*****

د ځان پیژندنه:

سفیان الثوري رحمه الله وایې:

«څوک چې ځان وپیژنی، د ده په اړه د خلکو له خوا کیدونکی خبرې به ورته زیان ونه رسوي».

العقد الفرید (۱/۲۲۹).

******

گټور تجارت

أبو حاتم ویلې دی:«گټور تجارت د الله جل جلاله ذکر دی او تاونی تجارت د خلکو ذکر او یادونه ده».

بهجة المجالس:(۸٦).

*****

د منافق نښې:

إمام وهب بن منبه وایي :

" د منافق دری نښې دی:

- په ځانلوالی کې سستی کوی،
- د خلکو له مخی بیا چټک او فعاله وی،

• په خپلو ټولو چارو کې په ستاینه ټینګار کوی."
حلیة الأولیاء : (٤٧/٤).
*****

دوست هغه دی چې په سختی کې دی ترڅنګ ولاړ وی
سعید رسلان وایي:
«پدې مه ویاړه چې سر د ویښتو په شمیر دوستان لري،
کله چې یې کوم یو ته محتاج شوي نو بیا به درڅرګنده شي چې
میرات یې».
*****

نن سبا به مو داسې خلک ډیر تر سترګو شي
سفیان بن عیینه رحمه الله وایي:"
«په خلکو به داسې وخت راشي،
چې په جوماتونو کې به یې شیطانان ناست وی، دوی ته به د دین
چارې ورښایي».
البدع لابن وضاح (٢٦٤).
*****

د نورو سپکاوی

په نورو پورې ټوکې او مسخرې هغه څوک کوی چې زړه له ناوړه اخلاقو او هر ډول بدو خویونو ډک وی.

له دې امله نبی صلی الله علیه وسلم فرمایي:

« د یو سړي لپاره دا شر پوره دی چې د خپل مسلمان ورور سپکاوی وکړي».

تفسیر السعدی سورة الحجرات

*****

ستر نعمت

پاچا له خپل وزیره وپوښتل: هغه کوم ستر نعمت دی چې الله تعالی یې خپل بنده ته ورنصیب کړي؟

وزیر په ځواب کې وویل: عقل دی چې پرې ژوند تیروی.

پاچا وویل: کچیرته عقل نوی؟

وزیر وویل: ادب دی چې ځان پرې سینګار کړی .

پاچا وویل: کچیرته ادب نوی ؟

وزیر وویل: مال دی چې بدۍ یې پټه کړی.

پاچا وويل: کچېرته مال نوی ؟

وزير وويل: بيا اسمانی تندر چې ويې سوځوی ، خلک او هيواد له غمه په راحت کې شي».

کتاب المستطرف للأبشهي

*****

د پاچا له ظلم څخه د خلاصون غوره لار

ابن أبي العز الحنفي رحمه الله وايې:

« که ولس غواړی چې د پاچا له ظلم څخه نجات ومومي، نو پخپله دی ظلم پرېږدي».

شرح عقيدة الطحاوية(٣٨٩) .

*****

امر بالمعروف

سفيان بن عيينة - رحمه الله -وايي :

«کله چې دی په نيکو امر وکړ

نو د مؤمن ملا دی ورمظبوطه کړه او کله چې دی له بديو منع وکړه

نو د منافق مخ دی ورخړ کړ"

الأمر بالمعروف للخلال: (ص ٤٣).

*****

دنيا د ژوند لنډه پیژندنه

علي بن أبي طالب رضي الله عنه ته وويل شو:

" يا أبا الحسنه مونږ ته دنيا راوپيژنه.

هغه وويل :

حـلال يې : حـساب او حرام يې : اور دی" .

[ الزهد لابن أبي الدنيا ۲۹ ]

*****

دفتنو څخه نجات

أبو بكر الآجـري رحمه الله وايي:

فتنې په ډيرو ډولونو دي:

ځينې سترې فتنې تيرى شوي...

چې له هغى څخه ځينې ملتونو نجات موندلى...

او ځينې نور په كې هلاک شوي:

چې لامل يې

- د خواهشاتو پيروى!.

- او دنیا ته ارزښت ورکول!.

الله تعالی چې چاته د خیر او فتنو څخه د نجات اراده وکړي:

- هغه ته د دعا دروازه پرانیزي.

- خپل رب ته پناه یوسي.

- پخپل دین وویریږي.

- د خپلې ژبې ساتنه وکړي.

- د وخت ارزښت وپیژني.

- د څرگند دلیل سره یوځای شي، چې هغه د عامه مسلمانانو(اهل سنت والجماعت) ډله ده.

- په دین کې اوړی راوړی نه.

- د الله تعالی بندگي کوي.

په فتنو کې لاس وهل پریږدي

ځکه د فتنو پر وخت ډیر خلک رسوا کیږي.

المصدر کتاب الشریعة( ۱/۳۹۲).

*****

ابن عثیمین رحمه الله وايي:
"کله چې د پاچا هیبت له مینځه ولاړ شي هیوادونه نا امنه شي، فتنې، ګډوډی شر او فساد عام شي".
*****

په دینی مسائلو کې داشتباه ستر لاملونه :
علامة ابن عثیمین -رحمه الله تعالی - وايي: "په دینی مسائلو کې د اشتباه او ګډوډی ستر لاملونه څلور دی:
اول : د علم کمښت:
د علم د کمښت له امله اشتباه مینځته راځي، ځکه د پراخه علم څښتن هغه څه پیژنی چې نور يې نه پیژني.
دوم : ناسمه فهم:
کله یو څوک د پراخه علم څښتن وی خو نصوصو څخه د ناسمه فهم اخستلو له امله پرې مسائل ګډوډ شي.
دریم :په نصوصو کې سوچ فکر نه کول:
یعنی: د نصوصو په پلټنه سوچ فکر او هغی د معناګانو په پیژندلو کې ځان نه کړوی په دی دلیل چې دا لازم ندی.

ځلورم: ناوړه نیت او اراده:
یعنی: د انسان موخه یوائې د خپلی وینا برې وی بې له دینه چې وینا یې سمه وی او که ناسمه، دچا نیت او اراده چې داسې وی نو علم د تر لاسه کولو محرومیږی،
ځکه د ده له علم ترلاسه کولو څخه موخه یوائې د خپلو خواهشاتو پیروی وی.....».
شرح ریاض الصالحین (١٦٣- ١٦٤).
*****

حافظ ابن حزم- رحمه الله-وایې:
«ټولې بې لارې ډلې،
د تل لپاره هڅه کوي چې د مسلمانانو نظام ګډوډ کړي، یووالی او امنیت یې له مینځه یوسي،
او د مسلمانانو په وړاندې توره وکاروي».
الفصل-٤/١٧١
*****

مبتدع او اسلام
ابن حزم- رحمه الله- وايي :
«الله تعالی هیڅکله په مبتدع انسان اسلام ته بری نه ورکوی».
[الملل والنحل]
*****
فائدة :
سهل بن عبدالله التستري - رحمه الله - وايي :
«د نیکۍ أعمال نیک عمله او فاسق دواړه کوي، خو گناهونه یواځې ریښتنی مسلمان پریږدی».
حلیة_الأولیاء (۱۰/۲۱۱).
*****
مقبل الوادعي رحمه الله وایې:
«کله چې دی په الله تعالی پناه ونیوله،
کې بیا ددې کون ټول وگړي ستا په خلاف دسیسه جوړه کړي،
نو الله تعالی به درته د حل او وتلو لار برابره کړي».
المصارعة ( ص۹).

*****

جهل دعبادت ناوړه پایله:

محمد بن سیرین وایي:

"یو ډلې د علم ترلاسه کول او د علماوو سره ناسته پرېخوده، په لمونځ او روژو نیولو یې پیل وکړو تر دی چې د زیات عبادت لامله د ځینو پوټکی په هډوکو پورې وچ شو،

بیا یې د سنتو مخالفت شروع کړو، هلاک شول او د بې گناه مسلمانانو وینې یې توی کړې،

زما د په الله قسم وی هغه ذات چې یواځې د عبادت مستحق دی،چا چې هم بې د علمې عمل کړی نو د اصلاح څخه یې فساد زیات کړی".

الإستذكار (٦١٦/٨).

*****

مونږ یې پلی کولو ته څومره اړ یو:

ابن الملقن -رحمه الله- وایي:

" د انسان په چوپتیا او خبرو کولو کې دوه سترې گټې دی، باید ترلاسه یې کړی:

۱- دخیر خبرې کول.
۲- له شره چوپ پاتې کیدل.
او دوه ستر تاوانه دی باید ځان ترې وژغوری:
۱- د شر خبرې کول.
۲- له خیره چوپ پاتې کیدل.
المعین في تفهم الأربعین (ص ۲۱٦).
خو لدې غوره د نبي کریم علیه الصلاة والسلام وینا ده فرمایي :
((..كف عليك هذا. ..))
ژباړه: ژبه دی بنده کړه.
بل ځای فرمایي: (( من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فليقل خيرا أو ليصمت)).
ژبړه: څوک چې په الله تعالی او په ورځ د اخرت ایمان لري نو د خیر خبرې دی وکړی او یا دی چوپ پاتې شي.
*****

سـتـرغل:

رسـول اکـرمﷺ فرمایي:

« له خلکو څخه تر ټولو ستر غل هغه څوک دی چې له خپل مانځه څخه خلا کوی، رکوع، سجده او خشوع یې نه بشپړه وی".

رواه الإمام أحمد.

*****

د بـدو بدله بـد وی:

یو حکیم وایي:

" که د ځان نه په ټیټو او کمزورو خلکو دی ظلم وکړو، نو ځان نه له لوړو او زورورو خلکو له ظلم څخه به بچ پاتی نشی".

متل دی وایي:

خپل عمل د لارې مل دی.

*****

په باطـــل سکوت:

عَلاَّمة عبدالعزيز بن باز -رحمه الله- وايي:

" د علماوو لپاره روا ندی چې په باطل چوپ پاتې شي او يا د مبتدع،فاسق او جاهل سره خبرې پرېږدي، دا کار ستره خطا ده،ځکه د شر او بدعاتو د خپريدلو ، خير د له منځه تللو او سنت د پټيدلو لامل ګرځي".

مجموع فتاوى ومقالات متنوعة : ( ٦ / ٥٣).

*****

د سنتو پــيروی وکـــړئ:

امام شافعي رحمه الله وايي:

"کله چې مو نبوی سنت مخې ته راشي د هغې پيروی وکړئ، او د هيڅ چا پروا مه کوئ".

ذم الکلام للهروی(٣٩).

*****

د حق لنــــډه پیژندنه:

إمام ابن باز - رحمه الله تعالی - وايي :

"حق هغه دی،

چې د سفلو په فهم دقران او سنت سره موافق وی".

الأجوبة المفيدة " ص (۱۱۳).

*****

پـــــام کـــــوه:

ابـن قـدامة رحمه الله وايي:

"پام کوه!!

پداسې څه مشغول نشئ،

چې ځان د اصلاح څخه مخکی د نورو د اصلاح په اړه وی".

مِنهَاجُ القَاصِدِين (۲۲).

*****

د شریعت غوشتنه ومنئ:

محمد بن عمر بازمول وايي:

دوی وايي:

" څرنگه چې يي هماغسی اوسه،

نه دا چې خلک يې له تا غواړي".

زه وايم:

"داسې اوسه چې شريعت يې غوښتنه کړي،

نه دا چې ته او خلک يې غواړي".

*****

دنیکۍ په وخت کې ګناه کـــول:

حافظ ابن رجب- رحمه الله- فرمايي:

«له ګناهونو ځان وساتئ،

ځکه ګناهونو د رحمت او نيکۍ په وختونو کې انسان له ښښنې محروموي».

لطائف المعارف(۲۹۵).

*****

دځـــــان ساتنه:

إمام ابن بطة العكبري -رحمه الله- وایي:

« له خلکو څخه ډیر زیات د ځان ساتونکی هغه څوک دی، چې دخپلې ژبې ساتنه کوی، په دین مشغول وی، بی ځایه ویناوې او کارونه پریږدی».

الإبانة الکبری (۲/۵۹۶).

*****

دمـــــؤمن رأس المـــال:

حسن البصري -رحمه الله- وایي:

" د مؤمن رأس المال دین دی چېرته چې ځي هلته ورسره وی.. نه ترې په سفر کې جلا کیږی او نه یې چاته ته سپاری".

الإبانة لابن بطة

*****

د اهل بــدعو ســـــره ناسته:

عبد الله بن المبارك-رحمه الله- وايي:

" يقينا الله جل جلاله له هر بدعتی توبه بندوی".

السلسلة الصحيحة (١٦٢٠).

عبد الله بن المبارك-رحمه الله- وايي:

" د بدعتی مخ سپيره وی، که څه هم د ورځې يې ديرش ځله غوړوی".

السنة اللالكائي (٢٨٤).

حيى بن أبي كثير وايي:

" که د بدعتی سره په لار کې مخ شوی،

نو په بله لار روان شه".

الإبانة لابن بطة(٢/٤٧٥).

فضيل بن عياض -رحمه الله-وايي:
"د الله جل جلاله له لوري ځانګړې ملائکې ذکر د
حلقو(مجلسونو) پلټنه کوی،
وګوره چې د چا سره دی ناسته ده، داسې نه چې د بدعتی سره نوی،
ځکه الله تعالی دوی ته نه ګوری، دا د منافقت نښه ده چې یو سړي
پاڅی او د بدعتی سره کینی، ما د غوره خلکو سره ناستی کړی چې
ټول یې متبع د سنت وو، دوی ټولو به د مبتدعینو سره د ناستی منع
کوله ".
حلية الأولياء(١٠٤/٨).
فضيل بن عياض -رحمه الله-وايي:
"زه له یهودی او نصرانی سره یوځای خوراک کوم،خو له مبتدع
سره نه، ا خوښه ګڼم چې زما او د بدعتی ترمنځ دی د اوسپنی
دیوال وی ".
الإبانة لابن بطة(٤٦٠/٢).

فضیل بن عیاض -رحمه الله-وایي:
"څوک چې له بدعتی سره مینه لري،
الله تعالی به یې نیک عمل برباد کړی او د زړه نه به یې د اسلام رڼا وباسی".
الإبانة لابن بطة(٢/ ٤٦٠).

فضیل بن عیاض -رحمه الله-وایي:
"له بدعتی سره مه کینه،
زه ویریږم چې په تا باندې د الله تعالی له لوري لعنت نازل نشي".
الإبانة لابن بطة(٢/ ٤٦٠).

له حمّاد بن زید -رحمه الله - روایت دی هغه وایي:
«مونږ ته یونس بن عبید وویل: دری نصیحتونه له ما ومنئ:
- خواهش پرسته ته غوږ مه نیسه،
- له هغه ښځې سره مه ځانله کیږه چې ستا محرمه نوی، که ته پرې قران هم لولی،

- پاچا او امیر ته مه ورننوځه که ورته نصیحت هم کوی».

الإبانة لإبن بطة" (۳۸۷).

مجاهد -رحمه الله- وايي :

« له أهل بدعو سره مه کینئ، ځکه دوی د پمن خارښ په څیر پلیت دي».

الإبانة لابن بطة (۳۸۹).

عبد الله بن مسعود -رضی الله عنه- وايي:

« خلک په دوستانو وپیژنئ،

ځکه سړی له هغه چا سره دوستی کوی چې خوښ یې وی».

الإبانة لابن بطة (۳۷٦).

ابن عباس وايي :

« له خواهش پرستو سره مه کینئ، ځکه د دوی سره ناسته زړه ناروغه وی».

الإبانة لابن بطة (۳۷۱).

له عمرو بن قيس روايت دی وايې: ويل کيدل به:
"د کوږ او بې لارې سره مه کينه، ځکه زړه به دی کوږ او بې لاری کړی".
الإبانة لابن بطة(٣٦٦).

أوزاعي ته وويل شو:
يو سړی وايي چې زه د اهل سنتو او اهل بدعو دواړو سره کينم،
اوزعی ورته وويل :دا هغه څوک دی چې غواړی د حق او باطل ترمنځ مساوات راولی.
الإبانة لابن بطة (٤٣٠).
*****

لنډ اغيزناک نصيحت:
أبوبكر الطرطوشي- رحمه الله -وايي :" يزيد الرقاشي عمر بن عبدالعزيز ته ورننوت هغه ورته وويل: ای يزيده! ماته نصيحت

وکړه، یزید ورته وویل:ای امیر المؤمنینه ستا او د ادم علیه السلام ترمنځ یواځې مړ پلار دی.
هغه وژړل او وویل:ای یزیده نصیحت زیات کړه!
هغه وویل:ای امیر المؤمنینه دجنت او دوذخ ترمنځ بل منزلت نشته، نو په هغه باندې بې هوشه راپریوت".
سراج الملوك (ص ٢٦).
*****

په نا امنی کې یواځې د فساد ګرو بازار ګرم وي:
أبوبكر الطرطوشي -رحمه الله- وايي : " که چېرته د پاچا د یو کال ظلم د تلې په یو اړ کې کېښودل شي او د ولس د یو ساعت ظلم او فساد په بل اړخ کې نو د ولس هغه به ستر او درووند وی د پاچا له ظلم څخه، ولی به داسې نوی؛ ځکه د پاچا په په زوال کې یواځې د فسادګرو بازار ګرم وي».
سراج الملوك : (ص ١٥١).
*****

گـــــټور نصيحت:

#سليمان بن عبد الملك حُمَيْد الطويل ته وويل: ماته نصيحت وکړه:
هغه وويل:"که تا چيرې د الله تعالی نافرماني کوله او پدې يقيني وې چې الله تعالی دېويني ، نو يقينا تا په په ډير ستر ذات جرأت کړی،
او که چېرته تا گمان کولو چې الله دی نه ويني، نو يقينا ته له ډير رحم کونکی رب انکار کړی .
.سراج الملوك ( ٢٩).

*****

ســـــتره فتنه:

له حذيفة بن اليمان -رضي الله عنه-وپوښتل_شو:
"کومه فتنه ستره ده؟ هغه وويل: داچې تاته خير او شر وړاندې شی او ته نه پوهيږی چې کوم يو خپل کړی".
حلية الأولياء ( ٧ / ٢٧١ ).

*****

د علم نشتوالی :

شیخ محمد رمزان الهاجري -حفظه الله- وایي:

"د علم نشتوالی د جرأت لامل کیږی او د الله جل جلاله په دین باندې یوائې جاهل جرأت کوی"

شرح کتاب شرح السنة ۲۱( / ۱۰).

*****

دنیا او اخرت:

وهب بن منبه رحمه الله وایي:

"دنیا او اخرت داسې دي لکه د سړي چې دوه ښځې وی، که یوه راضی کوی نو بله خفه کیږي".

*****

ورځ تربلې بدتره:

وهب بن منبه-رحمه الله- وایي:

"زه د خیلو اخلاقو پلټنه کوم، خو داسې څه په کې نه وینم چې ما خوښ کړی".

دا د خپل وخت خبره کوی، مونږ د خپل وخت په اړه څه ووایو:

حلیة الأولیاء( ٤/٦٦).

*****

انسان دوه شیان بد گنی:

رســـــول_اکــــــرمﷺ_فرمايي:

«بنی آدم دوه شیان بد گنی،

مرگ بد گنی،

خو مرگ ورته ډیر غوره دی له فتنې نه.

د مال کموالی بد گنی،

خو کم مال ورته حساب کموی».

صحيح الجامع الألباني :(١٣٩).

*****

د سنت سپيـــڅلي لار:

إمام أَحْمَدُ بنُ حَنبل إمامُ أهلِ السُّنةِ (هغه ستر شخصیت چې د خلق القران په فتنه او ازمیښت کې په خپل دریځ کلک او صابر پاتی شو ) وايي :

● نوی تابعینو،

○ د مسلمانانو امامانو،

○ د سلفو امامنو ،

○ د سترو ښارونو فقهاوو

پدې اجماع کړې هغه د سنت تګلاره چې

#رســــول_اکـــــرمﷺ پرې وفات شوی په لاندې ډول ده:

■ د اللّٰه جل جلاله په پریکړه راضي کیدل،

■ امر ته یې بشپړ تسلیمیدل.

■ په حکمونو یې صبر کول ،

■د هغه اوامر منل ،

■او له نواهیو څخه یې ځان ساتل ،

■د قدر په خیر او شر ایمان لرل ،

■په دین کې شخړې، جنجال او بې ځایه بحثونه پریښودل ،

■په موزو مسح کول،

■د نیک عمله او بد عمله خلیفه ترڅنګ جهاد کول ،

■څوک چې له مسلمانانو مړ شي په هغه لمونځ کول ،

■ایمان :

وینا او عمل دی ، په اطاعت زیاتیږي ، او په ګناه کمیږي ...

● قرآن :

▫د الله جل جلاله کلام دی ،

▫په مُحَمَّد ﷺ نازل شوی ،

▫غير مخلوق دی ،

▪پاچا د واکمنۍ لاندې صبر کول عادل او که ظالم ،

▪د واکمنانو په وړاندې به په توره خروج نکوو که څه هم ظلم کوي،

▪هيڅ د توحيد څښتن ته به کافر نه وايو ، که د کبره گناهونو مرتکب ولی نوی ،

▪ رســــــول اللَّهِ ﷺ د صحابوو ترمنځ چې څه واقع شوی په هغه کې له ورننوتلو ځان ساتل ،

▪له رَسُول اللَّهِ ﷺ وروسته غوره خلک:

○ أبو بکر ،

○ عمر ،

○عثمان ،

○ او علي دی چې د رســـــول_اکــــــرمﷺ تره ځوی دی ،

▪دِ رســـــول_اکـــــرمﷺ په ټولو صحابوو ، ځامنو ، بيبيانو ، او سخرګنۍ ترحم ويل ، رضوان اللّٰه عليهم أجمعين ...

دا دسنت لار ده ... خپله يې کړئ ، خپلول يې هدايت او پريښودل يې بې لاريتوب دی .
مأخذ: طبقات الحنابلة ؛ ج: (١). ص: (١٣٠ - ١٣١).
*****

نورود سپکاوی بدې پايلې:
ابن حبان-رحمه الله- وايي:
"عقلمند هيڅکله د څا سپکاوی نکوی، ځکه:

- څا چې د پاچا سپکاوی وکړ خپله دنيا يې خرابه کړه،
- څا چې د نيکانو سپکاوی وکړ خپل دين يې خراب کړ.
- څا چې د دوستانو سپکاوی وکړ خپل سړيتوب يې دفن کړ

او څا چې د عامو خلکو سپکاوی وکړ خپل خونديتوی يې ختم کړ".
روضة العقلاء(٤٠).
*****

د خلکو په وړاندې د اسلام ارزښت

ابن عقیل الحنبلي رحمه الله وايي:

"که غواړې د هم زمانه خلکو په وړاندې د اسلام ارزښت وپيژنې،
نو د جوماتونو په دروازو کې د دوی گڼې گوڼې او د لبیک لوړو چغو ته مه گوره،
بلکې د اسلام دښمنانو سره د دوی موافقت ته وگوره".

*****

دوخت_ارزښت

ابن عقیل الحنبلي - رحمه اللّه- وايي:

"ماته روا ندې چې د خپل ژوند یو ساعت ضایع کړم".

شذرات الذهب (۲/ ۳۷).

*****

حق پيژندنه:

فضیل بن عیاض نه د عاجزي په اړه وپوښتل شو، هغه وویل:،چې انسان

- حق ته تسلیم وی،

- غاړه ورته ږدي
- او له هر څه یې مني».

مدارج السالکین(۳۱٤/۲).

*****

ځان پیژندنه:

ابن رجب رحمه الله وايي:

" ای د آدم زویه! که چېرته دې د ځان قدر پیژندلی وی نو په گناهونو به دې ځان نه سپکولو،
ځکه ته له ټولو مخلوقاتو غوره او ستا لپاره جنت جوړ شوی دی".

لطائف المعارف:(۱۸۳).

*****

ابن حِبان ~ رحمه الله~ وايي:

"ما داسې هیڅ څوک ندې لیدلی چې له ځان نه په ټیټو خلکو یې لویي او کبر کړی وی، مگر دا چې الله جل جلاله له ځان نه لوړو خلکو ته په ذلت مبتلا کړی"

روضة العقلاء(١/٦٢).

*****

#گټور_وصیت

امام أحمد بن حنبل - رحمه الله- ويلي دی:

« الله تعالى دی پر هغه چا ورحمیږی چې

- د حق وینا کوی،
- په دلیل پسی روان وی،
- په سنتو منګولۍ لګوی،
- د نیکانو پیروی کوی،
- له بدعتیانو ډډه کوی،
- او الله تعالى د نږدی کیدو په موخه دهغوی سره ناسته ولاړه پریږدی».

طبقات الحنابلة(١/٣٦).

******

دعلم فضیلت:

امام شافعي -رحمه الله -وايي:

«څوک چې علم نه خوښوی په هغه کې هیڅ خیر نشته».

تاریخ دمشق :(٤٠٧/٥١).

*****

ابن عبدالبر - رحمه الله- وايي :

" پنځه کارونه د جاهلانو له خویونو دي:

▫په ناحقه غوسه او قهر کول،

▫په ناحقه د مال ورکړه او مصرفول،

▫په ناروا او باطلو کارونو کې بدن ستړی کول،

▫د دښمن په نسبت د دوست په اړه کمه پوهه او معلومات لرل.

▫د دوست راز افشا کول".

بهجة المجالس (٣/١٣٩).

*****

غم او خوشحالي:

ابن عباس -رضي الله عنهما- وايي :

« په هرڅا غم او خوشحالی راځي،

خو کله چې درته مصيبت او تکليف ورسی نو صبر وکړه

او کله چې درته خير او خوشحالی ورسی نو شکر وباسه!».

*****

اخلاقی فساد:

علي ابن أبي طالب- رضي الله عنه-وايي:

" کم عقلو سره په ناسته اخلاقی فساد مينځته راځي".

سِرَاجُ المُلُوك (١٧٨).

*****

هغوی همداسې وو:

ابن الجوزي رحمه الله وايی:" سلف به له لږ بدعت هم تښتيدل او له امله به يې اړيکې پريکولې ترڅو په سنتو کلک پاتی شي".

تلبيس ابليس (٨٥١).

*****

د دنيا ارزښت:

ابن الجوزي رحمه الله وايي:

په الله قسم! "د دنيا په هغې پراخۍ کې هيڅ خير نشته چې د اخرت لار تنګه کړي".

صيد الخاطر (٦٢٩).

*****

د فتنو په وخت کې ژبې د ساتنې ارزښت

صالح آل الشيخ حفظه الله وايې:

" د په فتنو په وخت کې به د سلفو چوپتيا زياته وه او خبرې به يې کمې، له دې امله به يې ويناوې حفظ کيدی او نورو ته به نقليدی، خو د وروستيو خلکو خبرې ډيرې دي، د فتنو پر وخت لا پسی ډيرې شي چې دا د کم علمي نښه ده".

الطريق إلى النبوغ العلمي(٣٠٩).

*****

په ګناه ځان مه سپکوئ

ابن رجب رحمه الله وایی:

" اې بنی آدمه ! کچېرته تا د ځان قدر پېژندلی وی نو په په ګناهونو به دې نه سپکو، ته په مخلوقاتو کې غوره يې او ستا لپاره جنت تيار شوی".

لطائف المعارف (ص١٨٣).

*****

د ټيټو خلکو کړنه

ابن حزم رحمه الله وايي:

" ملګرى له هغه څه مه خبروه چې نفس يې دردوى او له خبريدو يې هيڅ ګټه نشي اخستلاى، ځکه دا د ټيټو او رزيله خکو کار دى".

مداومة النفوس (٦٠).

*****

د نفس سره جهاد

مالك بن دينار رحمه الله وايي:

" د خپلو نفسونو سره د دښمنانو په څير جهاد وکړئ".

الكامل في اللغة والأدب (١٨٧).

*****

د ظالم پاچا په پیروی صبر

د ظالم پاچا په اطاعت صبر په هغې باندې د خروج کولو نه غوره دی،

ځکه له هغه سره شخړه او پرې راوتل:

- امن په ویره بدلوی،
-ويني توييږي،
- د واک واگې د کم عقلو لاس ته ورځي،
- د دښمن له خوا په مسلمانانو يرغلونه پيلږي،
- د ځمکې پرمخ فساد خپريږي".

الجامع لأحكام القران (٢/١٠٩).

*****

که څوک غواړي چې په نورو رد وکړي د هغوی لپاره طلايي نصیحت:

علامة ألباني رحمه الله د خپل کتاب السلسلة الضعيفة په مقدمه کي وایی :

"هر څوک چې غواړی په ما یا بل چې رد وکړي، ماته زما قلمي تیروتنه راپه گوته کړي یا زما فکر سمې لار ته برابر کړي، زه ورته نصیحت کوم:

چې باید د رد تگلاره او موخه یې نصیحت او حق ته لاربنوونه وي، نه بغض او کینه ځکه دا کار دین له منځه وړی،

نبي - صلى الله عليه وسلم - فرمايلی دی :

" تاسې ته د مخکنیو امتونو مرض در رسیدلی چې هغه بغض او کینه ده، او بغض له منځه وړل کوی د ویښتانو نه د دین".

ایا نن سبا زمونږ په ټولنه کې دغه تگلاره عملي ده او کنه؟

*****

قران سره د خلکو مینه کمیدل:

الضحاك رحمه الله وايي:

"په خلکو داسې وخت راتلونکی دی چې قرانونه به راځوړندوي تر څو غنې په کې و اوسيږي، د هغې له لاربنووونو به ګټه نه اخلي".

جامع بيان العلم وفضله (١٠٢٣/٢).

*****

غوره دوست:

ابن المعتز رحمه الله وايي:

غوره دوست هغه دې چې خطا دې هيره کړی په هغې درته پيغور نه درکوی، له تا سره کړی ښيګړه هم هيره کړی، په تا نه اثباتوی،

*****

په دين کې پټې غونډې نشته

عمربنعبدالعزيز - رحمه الله - وايي :

" کله چې دې يو قوم وليد له عامو خلکو پرته پخپلو ديني چارو کې پس پسی (پټې خبرې) کوي، پوهه شه چې دوی د بې لاريتوب بنسټ بږدي"

دارمي په سنن کې روايت کړی: (١ / ٣٤٣) ، او #عبدالله بن أحمد دخپل پلار په کتاب الزهد باندې په زياداتو کې ذکر کړي (ص٣٥٣).

*****

په عمل کې اعتبار:

حسن بصري رحمه الله وايي:

" د سنتو برابر لږ عمل د بدعاتو له ډير عمل غوره دي".

جامع بيان العلم وفضله (٢/٣٧٤).

*****

د خیریت تضمین:

حسن البصري رحمه الله وايي:

" بنده به تر هغې پورې په خیریت کې وی، ترڅو چې یې وینا او عمل الله تعالی د رضا لپاره وي".

کتاب الزهد(١٥٦٥).

*****

دری هغه تجارتونه چې تاوان نه لري:

- د الله تعالی کتاب لوستل.
- لمونځ قائمول.
- په ښکاره او پټه صدقه کول.

الله تعالی فرمايي:

(( إِنَّ الَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَٰبَ اللَّهِ وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً يَرْجُونَ تِجَٰرَةً لَّن تَبُورَ)).

ژباړه: کوم کسان چې د الله کتاب لولي او لمونځ قائموي او څه چې مونږ هغو ته روزي ورکړېده د هغې څخه په ښکاره او پټه (د الله په لار کې) لګښت کوي.

په یقیني ډول هغوی د داسې یوې سوداګرۍ هیله مند دي چې په هغې کښې به هیڅکله زیان نه وي.

*****

د ګناهونو په اړه مه نا امیده کیږئ او مه مغروره کیږئ:

أبو بکر الصدیق رضی الله عنه ویلی دی:

" یقینا الله تعالی کبیره(ستر) ګناهونه ببښی، تاسو مه نا امیده کیږئ، او په صغیره ګناهونو عذاب ورکوی، تاسو مه مغروره کیږئ".

شرح البخاري لابن بطال (۱۹/۲٦۷).

*****

د ځان پیژندل:

إمام السنة أحمد بن حنبل - رحمه الله - وایی :

"کله چې سړی ځان وپیژنی، بیا ورته د خلکو خبرې ګټه نه کوي".

السیر : (۱۱/۲۱۱).

*****

د ټیټو او سپکو خلکو مشر کیدل:

حافظ ابن الملقن رحمه الله وایي:

" کله چې تيټ او ذليله خلک مشران شي نو هغه وخت بيا مرگ غوره دی".

المعين على تفهم الاربعين (١/١٢٠).

*****

" د استقامت بشپړتيا:

علامة ابن سعدي رحمه الله وايي:

د خير پيژندل او په کولو کې يې هڅه کول، د شر پيژندل او په پريښودلو کې يې کوشش کول".

الفواکه الشهيه (١٣٨).

*****

والدينو سره د ښيگړې گټوره پايله:

سعيد ابن المسيب رحمه الله وايي:

" د والدينو سره ښگيړه کونکی په بد مرگ نه مری".

تاريخ ابن معين(٢/٣٢٨).

*****

فکر وکړئ
" کله د یوائیتوب ګناهونه ډیر اسان وي خو د ایمان لپاره ډیره سخته ازموینه وي".

*****

د مخلوق حق هرومرو اخستل کیږي:
ابن عثیمین رحمه الله رحمه الله وایي:
" داسې فکر مه کوئ چې په دنیا کې کوم ظلمونه کیږي دا به د ګرد به څیر په هوا کې والوزي، داسې نده بلکی د قیامت په ورځ به هرومرو د مخلوق حق اخستل کیږي".
شرح ریاض الصالحین(٤٠٠٢).

*****

د خلکو په نیتونو له نیوکې ځان وساته!
مکحول رحمه الله وایي:
"په لمانځه کې می سړی ولید چې ژړل یې، ما په ریکارۍ تورن کړ،
پوره یو کال له اوښکو تویولو محروم شوم".

العقوبات لابن أبي الدنيا

*****

وعظ او نصيحت وکړه که څه هم نيمګړتيا لري

ابن رجب الحنبلي رحمه الله وايي:

" که وعظ او نصيحت يوازې هغه څوک کوي چې له خطا او تېروتنې معصوم وي، نو د نبي کـــــريم (ﷺ) وروسته به چا خلکو ته وعظ او نصيحت نوی کړي، ځکه د نبي کـــــريم (ﷺ) پرته د بل چا لپاره عصمت ندې ثابت".

لطائف المعارف (١٩).

*****

د نورو رسوايي د ځان رسوا کول دي:

علامة ابن عثيمين رحمه الله وايي:

کچېرته دې خپل مسلمان ورور عيبونه خپاره کړل پدې پوه شه چې الله تعالى به پر تا داسې څوک مسلط کړي چې ستا عيبونه او نيمګړتياوې خپرې کړي.

تفسير سورة الحجرات (١/١٣٢).

*****

دين او عاطفه:

علامة ابن عثيمين رحمه الله وايي:

که دين پر عاطفه بنا وی نو ټول اهل بدع به پر حقه ول.

اللقاء الشهري (١١/٣٣).

*****

د وخت ارزښت:

ابن سماک رحمه الله وايي:

د دنيا ټول عمر لنډ دی، هغه چې پاتې دی ډير لنډ دی، د پاتې څخه ستا برخه بيا ډيره لنډه ده او ستا د عمر پاتې برخه لا هم لنډه او په نشت حساب ده.

سير أعلام النبلاء (٨/٣٣٠).

*****

ابن مسعود رضي الله عنه وايي:

د الله تعالى له ليدو پرته د مؤمن لپاره راحت نشته.

كتاب الزهد للامام أحمد

*****

د نورو سره باید څنګه تعامل وکړو؟
یو حکیم وایي:
که غواړي خلک درسره مینه وکړي، لار ورته پرېږده
که غواړي خلک درسره انصاف وکړي، خپل زړه ورته خلاص کړه،
که غواړي له خلکو سره انصاف وکړي، خپل عقل ورته خلاص کړه،
که غواړي له خلکو څخه سلامت پاتې شي، له ځینو خپلو حقوقو ورته تیر شه.
*****

د دنیا سره مینه:
سفیان الثوري رحمه الله وایي:
بې شکه داسې وخت راتلونکي دي چې د خلکو زړونه به د دنیا له مینې ډک وي، د الله تعالی ویره به ورته نه داخلیږي.
حلیة الأولیاء (۳۸/۷).
*****

ازمېښتونه او سختۍ پاک خلک له ناپاکو بېلوي:

أبو سعيد الخزار رحمه الله وايي:

سلامتيا او عافيت په ديندارو او فاجر دواړو پرده اچولې وي، کله چې تکليف او ازمېښت راشي هغه وخت سړي ښکاره او څرګند شي.

صفوة الصفوة (۲/۴۳۸).

*****

شهوت او عادت:

ابن سعدي رحمه الله وايي:

په زياتره خلک حواس غالب وي، شهوات او عادات پرې واکمني کوي، دې ستر غفلت او لوی مصيبت ته ډېر کم عقلمند او د ګوتو په شمار پوهه او ځيرکه خلک متوجي دي چې د تکليف او عبادت سترتيا يې ګاللې ده تردې چې خوند او عادت ورته ګرځېدلې دی بيا وروسته سرلوړي ورپه برخه شوي ده.

الدرة الفاخرة (۳۰).

*****

د بدو خلکو سره ناسته:

ابن قدامة المقدسي رحمه الله وايي:

د هغه خلکو له ناستې ډډه وکړه چې ناسته يې يوازې په دنيا کې ستا حرص زياتوي او د اخرت څخه دې غافله کوي، گناه کول درته اسانوي او له نيکيو سره دې مينه کموي،

کچيرته دې داسې مجلس پيدا کړ چې په کې د الله تعالى يادونه کيږي نو ترې مه جلا کيږه ځکه دا د مؤمن لپاره غنيمت دي.

مختصر منهاج القاصدين(١١٣).

*****

د بديو منع کول:

ابن رجب الحنبلي رحمه الله وايي:

په زړه باندې له بديو او نارواو انکار کول په هر مسلمان واجب دي، اما په لاس او ژبې سره انکار کول به د توان په اندازه وي.

جامع العلوم والحكم (٢/٢٩٠).

*****

د غوره خويونو خپلول :

سعيد بن العاص رضي الله عنه وايي:

آې بچوړيه: که دا فضيلتونه او غوره خويونه خپلول دومره اسان او بې زحمته وي نو له تاسې مخکې به ورته سپک خلک وړاندې شوي وي، بلکې نفس ته يې خپلول سخت او ترخ دي يوازې هغه څوک پرې صبر کوي چې قدر يې پېژني.

مکارم الأخلاق لابن أبي الدنيا (٣٠).

*****

د سپکو خلکو لاس ته مال ورتلل:

حمود التويجري رحمه الله وايي:

په اخره زمانه کې به مال د هغه چا لاس ته ورشي چې سپک، رزيل او د رزيلو ځامن وي، تر دې چې دوی به په خلکو کې د دنيا له شتمنۍ، خوندونو او مخورتيا برخمن وي.

*****

تولنیز ستر فساد:

امام مالک رحمه الله وايي:

بې شکه دا ستر فساد چې انسان هر څه اوري هغه وايي.

السیر للذهبي (۸/۶۶).

*****

عدالت:

امام ابن حزم رحمه الله وايي:

عدالت هغه کلا ده چې هر ویریدونکی ورته پناه وړي.

*****

په ژمي کې د اودس کولو فضیلت:

ابن رجب الحنبلي رحمه الله وایی:

په سخته یخنۍ کې پوره او سم اودس کول د ایمان له لوړو خصلتونو څخه دي.

لطائف المعارف (۱/۳۲۸).

*****

علم مو له شيطانه خوندي کوي:
ابن الجوزي رحمه الله وايي:
شيطان پر انسان هغه د علم د کموالي په اندازه برلاسي کيږي،څومره چې علم کم وي هغومره پرې شيطان زيات څواکمن وي او څومره چې يې علم زيات وي هغومره پرې د شيطان غلبه کمه وي.
تلبيس ابليس(١/٣٣٤).
*****

افسوس:
د قيامت په ورځ دا ستر افسوس دي چې خپلې نيکۍ د بل په تله کې ووينې.
اې ربه: ته مو ژبې له غيبت او چغلۍ وساتې
ژباړه:
*****

د مؤمن قوت په زړه کې دی:

شميط بن عجلان وايي:

الله تعالی د مؤمن په قوت په زړه کې ايخي دی نه په اندامونو کې، تاسو نه وينئ چې بوډا کمزوري هم وي خو د گرمۍ روژه نيسي او تهجدو لمونځ ته پاځيږي، خو ځوان له دغې کاره ناتوانه وي.

حلية الأولياء (١٣٥/٣).

*****

دري شيان عقل زياتوي:

امام شافعي رحمه الله فرمايي:

- د علماوو مجلس ته حاضريدل.
- د نيکانو سره ناسته کول.
- د بې ځايه خبرو پريښودل.

*****

رښتني محرومیت:

رښتني محرومیت دا دی چې اوږده ساعتونه د موبائل پرمخ تیروي، د ټولنېزو شبکو پاڼې اړوي راړوي خو د توان نه لري چې د قران کریم یو پاڼه تلاوت کړي.

*****

د سحر لمونځ:

عمر بن الخطاب رضی الله عنه وایي:

زه چې د سحر لمانځه ته په جمعې سره حاضر شم ښېشکه دا ماته ډېره غوره ده لدینه چې د شپې قیام اللیل ته پاڅم.

مشکاة المصابیح(۱۰۳۸).

*****

غمونه د گناهونو کفاره گرځي:

حسن بصري رحمه الله وایي:

کله چې د بنده گناهونه زیات شي او په عمل کې یې داسې څه نوې چې د هغې کفاره وگرځي، نو غمونه پرې مسلط شي ترڅو د گناهونو کفاره یې وگرځي.

سنن الصالحين(۲۹۵۷).

*****

شيطانان په جوماتونو کې:

سفيان بن عيينة رحمه الله وايي:

په خلکو داسې وخت راتلونکي دی چې په جوماتونو کې به يې شيطانان ناست وي، دوی ته د دوی د دين چارې ورښاي.

البدع لابن وضاح:(۱/۲٦٥).

*****

د ژوند او د مرگ فتنه:

رسول صلى الله عليه وسلم د ژوند او د مرگ له فتنې څخه پناه غوښتله،

د ژوند په فتنه کې: د دين او دنيا ټولې فتنې شامليږي، لکه: گناهونه بدعات او کفر.

د مرگ په فتنه کې: بده پای او د قبر فتنه شامليږي؟

*****

گناهګار دري شیانو ته اړمن دی:

- الله تعالی ورته د هغه څه ښښنه وکړي چې د ده او د رب ترمنځ دي.
- الله تعالی پرې د خپلو بندګانو په وړاندې پرده واچوي، د هغوی په مخ کې رسوا نه کړي.
- الله تعالی یې ساتنه وکړي چې بیا د دې په څیر په بله ګناه کې ښکیل نه شي.

تفسیر ابن کثیر:(۱/۷۳۸).

*****

د شیطان له لورې د انسان بې لارې کیدل:

ابن الجوزي رحمه الله فرمایي:

انسان د بې لارېتوب لپاره د شیطان دوه لارې دي:

- څوک چې د کمي او ګناه څښتن وي هغه ته شهوتونه ښائسته کړي.
- څوک چې د عبادت او بندګۍ خاوند وي هغه ته په دین کې غلوکول ښائسته کړي ترڅو دین پرې فاسد کړي.

تلبیس إبلیس.

*****

د نورو له نیمگړتیاوو ځان ناخبره کول:

ابن سعدي رحمه الله فرمایي:

څوک چې د خلکو له عیبونو ځان ناخبره کړي او خپله ژبه د هغه احوالو له پلټلو ایساره کړي چې هغوی څرگندول نه خوښوي، نو خپل دین او عزت یې خوندي کړ.

الفواکه الشهیة (١/١١٢).

*****

بل څوک سپک مه گڼه:

ابن حجر الهیثمي رحمه الله وایي:

بل څوک سپک مه گڼه ښایي د الله تعالی په وړاندې له تا ښه، غوره او نږدې وي.

الزواجر(٢/٨).

*****

د ستونزو اساس:

ابن عثیمین رحمه الله فرمايي:

ټولې هغه ستونزې او مشکلات چې انسان ته له بدو خاطرو او وسوسو رسیږي اساسي لامل يې د لمونځ ضايع کول دي.

جلسات رمضانية (١٩/٢).

*****

په جمعې سره لمونځ کول:

سعید ابن المسیب رحمه الله فرمايي:

څوک چې په جمعې سره د پنځه وخته لمونځونو پابندي وکړي، یقینا داسې ده لکه: ده چې وچه او لمده په عبادت ډکه کړې وي.

حلية الأولياء (٢/ ١٦٠).

*****

دنیا پریږدئ:

سفيان الثوري رحمه الله وايي:

بېشکه د غې پاچايانو ستاسې لپاره اخرت پرېښي دی، تاسې ورته دنیا پریږدئ.

سير أعلام النبلاء.

*****

په دعا کې ټینګار کول:

عبد الله مسعود رضی الله عنه فرمايي:

ترڅو چې ته په لمانځه کې یې د پاچا دروازه ټکوي او څوک چې د واکمن ذات دروازه ټکوي نږدې ده چې ورته خلاصه شي.

مصيف ابن ابي شيبة (۸۳۵۵).

*****

هیڅ کله بدعت د دین برخه نه ګرځي:

امام مالک رحمه الله وايي:

څوک چې پدې امت کې داسې څه پیدا کړي چې هغه امت د سلفو تګلاره نوې، یقینا هغه ګمان وکړ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په دین کې خیانت کړي، ځکه الله تعالی فرمایي:((اليوم أكملت لكم دينكم)) المائدة: ۳

ژباړه: ما نن ورځ ستاسې لپاره ستاسې دین بشپړ کړ.

څه چې هغه ورځ دین نه و نن هم دین نشي ګرځیدلای.

الإعتصام للشاطبي(۲/۵۳).

*****

د مرګ یادونه:

أبو الدرداء رضي الله عنه فرمايي:

څوک چې د مرګ یادونه زیاته کړي کینه او خوشحالي به یې کمه شي.

مصنف ابن ابي شيبة (۷/۱۱۰).

*****

پند:

ابن الجوزي رحمه الله فرمايي:

تباه شي:

مخکې لدې قبر ته لاړ شي چاره دې سمه کړه، ګناهونه دې څومره ډیر دي او عیبونه دې څومره ناوړې دي، نفس په هغه څه برلاسي کوي چې ګمان یې کوي او په هغه څه یې نه واکمنوي چې یقین یې لري، مال د کمښت لامله غمژن کیږي خو عمر د کمښت لامله نه.

تسنيم السحر ومنظومة الدرر (٦٢).

*****

د خوب اداب:

- اودس کول.
- د وترو لمونځ کول.
- بستره څنډ وهل.
- د خوب اذکار ویل.
- د راويښيدو لپاره ساعت برابرول.

*****

منافق او قران کريم:

منافق ته گټې ورل ډير اسانه وي قران کريم د تلاوت نه.

الحلية (١/٤٥٩).

*****

د اصلاح پیل:

کله چې غواړې ژوند دې اصلاح کړې خو نه پوهيږې چې له کومه ځايه يې پيل وکړې؟

نو د لمونځ اصلاح دې پيل کړه.

